انجنیـــــــــران ، ښوونکو ، ډاکترانو
د ټولو روشنفکرو د قشر و نو د شوراو -
ګانو په بنسټ لنډه داچې‌دهیواد دټولو وطنپالو
نکواو ترقی غوښتو نکو طبقو او دموکراتیکو
قشرونو دپراخ یووالی‌پربنسټ او اساس‌ټینګ
دی او ټینګیږی‌خو هغه‌ټینګ پیاوړی او غښتلی
بنسټ زموږ ګوند اودولت پری تکیه لری‌دنورو
ټولنیز وسازمانونو په‌لړکی دافغانستان‌کارګری
اتحادیې دی‌چی نن‌یی دعالــی شورا استازی
سره را ټول شویدی‌موږباید دکارګری اتحادیو
ستر اهمیت او دکارګری اتحادیو مهم رول
او وظیفی په ژوره توګه درك کړو اوویی
پیژنو، البته دادفعالینو کادرونو، مسوولینو
لیکوالو ګوندی ملګرو او نورو سازمانونو اود
کارګری اتحادیو دکادر نو وظیفه ده چی د
کورنیو دښمنانو دسیمی دارتجاع او بین‌المللی
دښمنانو پر ضد په مبارزه کی او ښه دکارپه
جبهه او ښه ددسپلین او انضباط په جبهه‌کی
اوښه د دموکراتیکی ټولنی په جوړ ولوکـــی،
دکارګری اتحادیو درول او اغیزی اهمیت‌او
ورپسی له سړی ښخه د سړی له استثمارنه
دخلاصی ټولنی‌اوپه پای‌کی له طبقونه دخلاصی
ټولنی رول او اهمیت وپیژنی .

کارګرو ملګرو !

هیله می‌درلوده چی د کارګری اتحادیو درول
اووظیفو په‌باب زیات ښه ووایم ،خود پروګرام
له مخی وخت لږ دی ، سره له دی که چیری
مطالب فورمول بندی کړم ، وایم چی داکار
ګری اتحادیې دی چی دکارګری طبقی ډیر ښه
اوډیرپوه بچیان روزی، تربیه‌کوی یې، ټولنی
ته‌یې ،وړاند کوی ،اود ګوند دډیرو ښوغړ
یواداره کوونکو کادر ونو او دګوندی اودولتی
شخصیتونو په توګه یې وړاندی کوی، دغه
کارګری اتحادیې دی چه له ښارونواو فابریکو
ښخه کلیو ته ځی اودهیواد له سترو قوتونو
یعنی دبزګری له سترو پر ګنو سره دبزګری
له ملیونو پرګنوسره دیووالی او اتحاد ټینګ
لاس ورکوی او دافغانستان دنوی ټولنی دنظام
دملاشمزی لکه دکلکو پولادوپه شان له‌بل‌سره
ټینګوی .

داکارګری اتحادیې‌دی‌چی‌په‌داسی شرایطوکی
چی دولت اوسیاسی واکمن قدرت دکارګری
طبقی او دټولو زیارایستونکوپه‌لاس کی‌اود
خپل مخکښ‌یعنی دافغانستان‌دخلك دده‌وکراتیك
ګوند دافغانستان دزیارایستونکو دګوند تر
رهبری لاندی دی،ټول کارونه دټولنیز،اقتصادی
او فرهنګی ژوند ټولی چاری ترخپل کنترول
لاندی راولی په ټولو آزاد غوښتونکو اوکارګری
بریالیو انقلابونو کــــی همدغه پوه او زړور
کارګران ووچی له بزګرانو او دټولنی له نورو
قشر ونو او دموکراتیکو طبقو سره په یووالی
کی له بهرښخه ددښمنانو دتیری په وخت کی
او هغه وخت چی نور مرتجعین اوواکمنی طبقی
رانسکوری شویدی دخپلواکی غوښتونکی‌اودو
او وسله په لاس انقلابی پوځ یی جوړکړ .

داکارګران ووچی دبزګرانو او خپلو نورو
متحدینو په نژدی یووالی سره یی ښه دکوړنی
جګړی په شرایطوکی او ښه دقحطی اوبیسوادی
درنځ ، ناروغی ، بحران اوبی وزلی په شرایطو
کی‌دویروونکو او ډارونکو زیارنو سختیـــواو

ستونزو په زغملوسره په‌میړانه ټول‌مسوولیتونه په غاړه واخیستل ،له خپل دولت ، له خپل ګوند ، له خپل هیواد ، له خپل مورنی‌وطن، له‌خپلو خلکو څخه یی په قهرمانانه توګه دفاع وکړه اوخپل ځانونه یی له ویری پرته اوپه زړورتوب او میړانه قربان کړل .

نوکار ګرو ملګرو ووینی چی په کارګره طبقه کی څه ستر جوړ وونکی قدرت داسی قدرت چی انسان آزاد اونیکمرغه کوی پروت دی، نو ژوندی‌اوتل‌دی وی د افغانستان دوران جوړ وونکی کارګره طبقه او بریالی دی‌وی د افغانستان دکارګرانو دملیونی اتحادیو لاپراخه وده او بشپړتیا، ټینګ‌دی‌وی دافغانستان دکارګرانواو بزګرانو ټینګ اونه ماتیدونکی یووالی .

په‌پای کی دافغانستان دخلك ددموکراتیك ګوند دافغانستان دکارګری طبقی او ټولو زیارایستونکو دګوند دمرکزی کمیټی لخوا د افغانستان په راتلونکی سر نوشت کی یوه تاریخی حیاتی ستره او ټاکونکی بلنه ورکوم.

بلنه ورکوم چی د افغانستان کارګرانو د افغانستان زیار ایستونکو بزګرانو له خپل ګوند د افغانستان د خلك‌له دموکراتیك ګوند سره یوځای شی، دایوازی شعارندی دا دافغانستان دخلك ددموکراتیك ګوند دهر غړی وظیفه ده دایوه داسی وظیفه ده‌چی‌دهغه پت‌اووجدان باید حکم‌وکړی اوهغه ته‌لارښوونه وکړی چی‌دهغه‌لومړنی وظیفه‌داده‌چه دګوند دروازه په لومړی پړاو کی په لومړی ګام کی یوازی دپوهو،او باشعوروکارګرانودپاره دافغانستان دزیار ایستونکو خلکو دپاره‌بیخی خلاصه ده .

دافغانستان پوهو، میړنیو اوویاړلو کارګرانو پری نږدی چی ډول ډول اپور تونستان ، منحرفین ، چوکی پالونکی،بیرو کراتان، امتیاز غوښتونکی او دخلکو ضد قوتونه او عناصر له ټولو ډول ډول انحرافی خصلتو نو سره ستاسی دګوند دروازی ته لاره پیدا کړی ،ځکه چی دګوند ساتونکی باخبره کارګران دی .

دافغانستان باخبرواو پتمنو کارګرانو !

دافغانستان دخلك دموکراتیك ګوند دچوکی پالونکو ګوند ، دموټرو غوښتونکو ګوند، د ماڼی غوښتونکو ګوند ، دپیسو غوښتونکو ګوند، دمقام پالونکوګوند، دروشنفکرانو ګوند نه دی دغه دپرولتاریا ګوند دکارګری طبقی ګوند ، دکړ او ګوند او دپوهی ګوند دی .

کارګرو ملګرو !

باید وروسته پاتی کارګران لوړ کړ وله هغوی سره مرسته‌وکړو له بزګرانو سره‌مرسته وکړی ستاسو ځوانو پوهو زړ ورومیړنیو او دافغانستان دپاك لمنو کار ګرانو په قدرت سره کولای شو روشنفکران او نور قشرونواو هغه طبقی چی دافغانستان دخلك ددموکراتیك ګوند دغړیتوب ویاړ یی یاپرون ترلاسه کړی یایی نن ترلاسه کوی او یابه یی سبا ترلاسه کړی په پرولتری خوی ، په کارګری خوی ، په کارګری اخلاقو ، په کارګری اداری، په کارګری شرف‌او په‌کارګری‌کنترول سره وروزو.

گوند واقعا ، کارگری لوړ طراز ، یعنی د افغانستان پرولتری لوړ طرازتهوده او بشپړتیا ورکړی ، دافغانستاندزیارایستونکو نه ماتیدونکی پولادی دولت دافغانستان د کارگری اداری ماشین ، دعدل ، تقوا ،سولی اوآزادی، ترقی او دموکراسی دلوړی نمونیپه توگه دنوی ټولنی ،یعنی دهغی ټولنی لپاره چی په هغی کی نورد شتمنی اوبی وزلی پوښتنه نهوی جوړ کړی .

دلته له هغو کسانو څخه چی پروگرام بی جوړ کړی وو بخښنه غواړم ، څکه چیدهغو زیات وخت می ونیو ، په دغه تاریخی شعار سره خپلی خبری ختموم :

ـدافغانستان کارگرو ملگرو دافغانستان زیارایستونکو بزگرانو ، دافغا نستان دخلك له دموکراتیك گوند سره یو ځای شی، دغه گوند ستاسو دی دغړیتوب لومړیحق یی ستاسودی.

ـهمیشنی ویاړدی وی پرهغو کارگرانو چی دزیارایستونکی انسان دخلاصون اوخپلواکی په لاره کی په سنگر کی شهیدان شویدی .

# باید دافغانستان خلک تول دافغـــان او مسلمان په توګه یو موټی شی او دخپل دولت په مرسته له خپلی خاوری څخه ظلم ورک کړی

دافغانستان دخلک د دموکراتیک ګـوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی ، دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم ببرک کارمل دجوزجان ، فاریاب بلخ ، سمنګانو ، بغلان ، پروان او با میانو دولایاتو یو شمیر روحانیون، مشران او دخلکو استازی دارګ به بڼ کی ومنل اودافغانستان په ننی او راتلو نکی سر نوشت پوری د مربوطو حیاتی مهمو مسالو او دافغــانستان دخلکو د هر وګړی د و ظیفو او رسالت په باب یی داسی وویل :
۱۳۵۹٫۳٫۲۳

وطنوالو او ګرانو ورونو !

ستاسی او ستاسو د څیرو په لید لو سره ستاسی په وړاندی عرض کوم چی زما زړه ډیرسوزاوه له ټولو لومړی ستاسی له حضور څخه هیله کوم چی خپل سرونه د لوی خدای نه پرته هیڅ ته ټیټ نکړی ، بس دی چی په سلګونو کاله زموږ پلرونو دظالمانو، جبارانو او دوینی څښوونکو واکمنانو شکنجی یی تیری کړی ، راشی وروسته له دی هرڅوک چی وی، نوم یی ته هر څه وی جمهور رئیس وی ، دانقلابی شورا رئیس وی ، والـــی وی ، جنرال وی ، هر څوک چی وی نه یی لاس ښکل کړی نه نوره تواضع وکړی .

لوی خدای حضرت محمد (ص) د څه له پاره موظف کړ د خدای مخلوق ته د خدمت له پاره .

تو څنګه چی د لوی خـــدای پیغمبر وو ، متواضع و، موږ چی عاجزامت یو، یو عاجز بنده یو، دا سمه ده چی ډیر زنګونونه مو وګــالل له توان



دافغانستان د خلك د دموكراتيك گوند دمر كزى كميټى عمومى منشى ، دانقلا بى شورا ر ئيس او صدراعظم ببرك كار مـــل دسمنگانو ، بغلان ، پروان ، بلـخ، جوزجان، فارياب او با ميانو د و لايتو نو د عا لمانو، روحانيونو ،سپين ږيرو او استا ز و سره د خبرو په و خت كى .

ښخه پورته رنځ ، داسی رنځ چی ان پەنړی

کی ډیر لږ ساریلری،زموږپلرونو پەسلګونو

کلونو رنځونه وګالل ، په تیره بیا د نادر

دکورنی په راتلو سره، خه بد مرغی نه ویچی

پەافغانستان کی پیښی نشوی ، په زرګونو

کورونه یی تباه کړل ،بی اتفاقی یی واچوله

نژادی توپیریی راوست ، یو کام یی د بل کام

پر خلاف یو مذهب یی د بـل مذ هب یومنیت

یید بل ملیت پر خلاف وپاراوه دښمنی یـی

واچوله، پەزرګونوکورنییی لوټکړی، خلك۔

یی لوځ کړل، د خپلځای دپاره یی دخلکو له

وینو ښخه ژوند او ماڼی جوړی کړی ،بیا یوه

هیله پیدا شوه د ثور دانقلاب هیله •

باید موږ د افغانستانخلكټولد افغانستان

اومسلمان په توګه یو موټی شو او دخپل

دولت په مرسته له خپلی خاوری نه ظلم بیخی

ورك کړواو دبدمرغی ، ستم اوبیوزلی جوړی

له خپل هیواد ښخه وباسو .

زه دستاسو دهیوادوال، ستاسو دخدمتګار

ستاسو د ورورپه توګه تا سوته حقیقت وایم

زەدیوه انسان او مسلمان په توګه یوه مینه

لرم اوهغه زما د هیواد ، زما د خلکو، زمادوطن

لەخپلواکی او آزادی سره مینه ده •

خو یوه مسئالەتکرار وم چی افغانستانآزاد

مستقل او مسلمان ؤ او وی به اوهغه ورځی

لری نه دی چی ټولو نړیوالو ته وښیو چـی

ډیرلوړ ټولنیز عدالت او داسلام د مقدس دین

اساسات له ټولی نړی ښخه زیات پەافغانستان

کیتطبیق کیږی •

په نړی کی هیڅ داسی قدرت نشته چید

چاژړه ،وجدان او دینی او مذهبی او اسلامی

عقیده دهغەلەروح اووجدان ښخەوباسی، لەدی

امله هغه څوك چی سوادلری په پوره ډاډسره

دی د افغانستان د دموکراتیك جمهوریـت

اساسی اصولو ته پاملرنه وکړی او هغه څوك

چی سواد نلری زموږ باسواده وروڼه دی ورته

ولولی چی یوه ماده ، یوه کلمه او یوټکی

یوازی د اسلام داصولو په خلاف یوه کلمـه

یکی نه پیدا کیږی ، بلکی له سر نه ترپایه

پوریپه څو ځایونوکی په ټینګار اوټینګارسره

ویل شویدی چـی نه یوازی احترام بلکـی

داسلام دمقدسو اصولوجدی رعایت دافغانستان

ددموکراتیك جمهوری دولت وظیفو ښخه دی،

نوستاسی په وړاندی ستاسی د یوه ورور او

خدمتګار په توګه عرض کوم چی زما آواز پـه

ټول هیواد کی خپلو ورونو ته ورسوی چـی

دهیڅ دښمن تیرایستنیتەهر څوك چیوی باید

غوږ ونەنیسی او با ورونکړی ، افغانستانیو

مسلمان هیوادد ی موږ به دخپل هیواد د

روحانیونو پیروان اوسو او دهغـوی مراجـع دټولو مسلمانانو او په تیره بیا د خپلو افغانو به‌مقدس وی،دافغنستان‌ټولو خلکو ته وواياست مسلمانو ورونو د ژغورنی او بری له پاره‌دعا چی‌هره ورځ دلوی خدای په درگاه کی دنړی وکړی.

# که دشوروی اتحاد محدود وقواوشنه والی نه وای نن به ړموږ هیواد دامپریالیزم ناولی خولی ته لوېدلی وای

دافغانستان له انقلاب سره دبین المللـــی پیوستون دجرګی په هغه وروستی غونډه کی چی دارګ دسلامخانی دماڼی په تالارکی وشوه دافغا نستان دخلك دده موکراتیك ګوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم ببرك کارمل دوینا متن :    ۷ر۴ر۱۳۵۹

در نو میلمنو، دوستانو ، محترمو استازیو، ګران ملګرو !

لومړی اجازه را کړی چی دحق او حقیقت د لاری ، دسولی او آزادی دلاری ، دعدالت او بشری حقوقو دلاری ، ستاسی زړورو مبارزینو راتګ ته چی زموږ له عادلانه اوپه حقه مبارزو سره دپیوستون په خاطر، زموږ انقلابـــی هیواد ته راغلی یاست ښه راغلی وایـــم او ستاسی حضور ته تاوده درودونه وړاندی کړم •

دافغانستان بی وزلی او مسلمان خلك ددی جرګی کارته چی دسیمی دارتجاع دعربود ارتجاع صهیونیزم اوپه سر کی دامریکا رسوا امپریالیزم اودپیکنګ له مرتد مشر تابه سره په لاس یوکولو سره دبشرمه تیریو په وړاندی دخپلی ځمکی دتمامیت، خپلواکی او ملـــی حاکمیت ددفاع او دثور انقلاب دښیګڼو ددفاع په لاره کی زموږ خلکو له انقلابی پر له پسی مبارزو سره دورونو خلکو دمبارزه کوونکـــی پیوستون ښکار ندوی ده دمننی اودرناوی په ستر ګه ګوری •






دافغانستان دخلك ددموكراتيك گوند د مركزي كميټې عمومي منشي ، دانقلابي شورا رئيس او صدراعظم ببرك كارمل كله چې
دافغانستان له انقلاب سره دنړيوال پيوستون په وروستي غونډه كې وينا كوي ·

موږ عقیده لرو چې په اوسنی لانجمنه نړی کې چې ارتجاع او امپریالیزم ظلم کوی دخلکو دبری یومهم رکن دنړی دانقلابی بیلابیلوگرد- انونو ترمنځ دمبارزی دپیوستون لاټینګتیا او لاپراختیا ده •

داسیا او افریقادخلکو دپیوستون سازما ن ترستم لاندی او لوټ شویو خلکو اودغـــه رازداستثمار له جغ څخه دازادشویو خلکـــو دحقوقو او ارمانونو ددفاع په لاره‌کی لهولولو اونه ستړی کیدونکو مبارزوپه یودیرشــــــ کلن عمر کی‌دیوی ډیر باوری اومبارز سازمان په توګه پیژندل شویدی، دافغانستان زیارا- یستونکی ومسلمان خلك زموږ په هیواد کی دانقلاب او انقلابی بنیګنو ددفاع په کار کی ددغه سازمان وړ رول‌اوشریفانه هلو ځلو ته ډیر زیات اهمیت ورکوی دافریقا او اسیا د خلکو دپیوستون سازمان دخپل جوړ ښــت څخه راهیسی تراوسه پوری تل دنړی دټولو سوله دوستو ازادی غوښتونکو او مترقـــی قوتو او ملګری مرستندوی اوربښتینی اوفعال ملاتړ کوونکی دی •

دافریقا او اسیا دخلکو دپیوستون سازمان تل دسولی او ترقی په لورگام اخیستی دی اودا یوناځاپی کارندی چې دشوروا گا نو ستر هیواد زموږ دسیالری دانسانانو اودافریقا او اسیا دنورو مترقی اوسوله دوستو قوتونو د آزادی، سولی اونیکمرغی د دفاع دغه ټینګ سنګر چې ددغه سازمان دغړیتوب ویاړ ورپه برخه‌دی ارتجاعی او امپریالیستی تور قوتونو گام په گام په‌شاتمبوی اوله یوبری څخــــه تربل بری پوری دخلکو دآزادی او ترقی او نیکمرغی ددفاع نوی سنګرو نه جـو ړوی او ټینګوی یی په دی توګه ورځ په ورځ په‌زیا- تیدونکی توګه جګړه غوښتونکی او تیـــری کوونکی او پراختیا غوښتونکی استعمارګراو استثمار گر پیښه غوښتو نکی قوتونه له بی شرمه‌ما تو سره مخامخ کیږی، دخپل تسلطاو لرتماری سنتی‌سنګرونه‌له لاسه ورکوی‌اوزموږ دپیړی ژورانقلابی خصوصیت چې دکارګری او ازادی بخښونکو انقلابونو پیړی داستعمار ی تسلط دورستو ځنځیرونو دماتو لوپیړی او د پرګنودخلاصون پیړی‌ده لاپسی زیات، لاپسی قوی، لاپسی ستراو لاپسی څرګند یږی •

زموږ دپیړی دبی شمیره پیښو جریان د سولی او ترقی دبشریت دنیکمرغی اوازادی دقوتونو دموکراسی اوټولنیز عدالت په گټه او دزاړه اونوی استعمار، امپریا لیزم‌اوصهیو- نیزم، فاشیزم ، مائویزم اوراسیزم نـــژادی توپیر اواپارتاید په‌زیان دقوادانډول د ورځ په ورځ زیاتیدونکی بدلون په باب له ټولولو ډك او الهام بخښونکی واقعیت لاپسی زیات‌او لازیات پراخوی او تاسی دوستان او ملګر ی ددغه انقلابی مخکښ جریان په بهیرکی ولاړ یاست. دی ځای زموږ هیواد ته ستا ســـی دوستانوراتګ‌چی‌دپیړیوپیړیوذلت، خواری او ډول ډول ستمونوله زغملو وروسته یی ملاسمه کړی ده اودخپل ملی اودموکراتیك انقلاب د بشپړ تیا په بهیر سره یی‌دټولنیز ربنتینـــی عدالت لاره دانسان دنیکمرغی دعینی لاروچار- ودپیدا کولو لاره خپلی ربښتیـــــنی آزادی او خپلواکی لاره پرانیستی ده اوله دی امله د امپریالیزم له وحشیانه غوسی او کینـــی سره

مخامخ شویدی دسولی او هغی نیکمرغی ددفاع په باره‌کی ستاسی دارادی او پاکی هیلوستره نښانه‌ده چی موږیی غواړو. موږکلك ایمان‌لرو چی په‌نړۍ‌کی هیڅ‌وجدان لرونکی‌او پتمن‌سړی زموږ دګوند، حکـومت او دولت ددی ټولـو انسانی لوړو هلڅو ښه نه نیسی او نشـی کـولای لـه هغـو سـره مخالفـت وکـړی و ر و ستــه پــا تــی او نیستمــن دی خود فیوډالیزم او ماقبل فیوډالی تــور ذهنیتونه یی مات‌کړیدی اوزموږډیرلوړهدف زموږ دزیاراییستونکو خلکو سوکالی اوډژوندانه دسطحی لوړول دی. بیازه ټینګار کوم چــی موږ کلك ایمان لرو چی په نړی کی هیــڅ وجدان لرونکی اوپتمن سړی زموږ دګوند او حکومت اودولت ددی ټولو انسانی لوړ وهدفو- نو مخه نه نیسی اونشی کولی له هغو سره مخالفت وکړی. تاسی دوستانوته ډاډورکوم‌چی دافغانستان دزیارایستونکو خلکو له انقلاب څخه ستاسودفاع‌اصولی عادلانه‌اوپوره انسانی اوپتمنه ده، تاسی دافغانستان له‌آزادی‌بښونکی انقلاب څخه په صادقانه دفاع سره دداســی لاری دفاع کوی دسیمی دسولی او دوستــی دخلکو امنیت او ارامی دانسانانو دآزادی اود انسانی نیکمرغی په لوری ځی .

دافغانستان انقلاب یوژور ملی اودموکراتیك انقلاب دی چی فیوډالی ضد اوامپریالیستــی ضد څرګند اوپه‌شانه تلونکی‌دریځ لری اوزموږ دآزادی بښونکی اردو دقهرمانی لهامله دافغا- نستان دخلك دموکراتیك ګوند په مشری او زموږ دخلکو دټینګی ارادی پربنسټ داستبداد اوارتجاع وروسته پاتی والی اوبی عدالتــی دختمولو په لاره کی بیخی او بیخی بریالــی کیږی دغه انقلاب چی زموږ دټولنی داوسنــی پړاو دبشپړ تیا دعینی قانونمند ماهیت څخه یی سر پورته کړی اوداستبداد او خپل سری ماهی یی دوړی وړی کړه یوشمیر سست‌عنصرو بی پرنسیپو، فاسدو ، عوام غولونکو او غیر مسؤولو عناصرو دخیانت له امله چی په سر کی یی‌معلوم الحال حفیظ الله امین‌ودئورانقلاب له لوړو هدفونو څخه وروسته دبیرته‌ستنیدو په لاره کی دګمراهی، تباهی او شرموونکــی بی لاری کیدو په لوری راکښل کیده له ننګ اوډار څخه ډکه دوره‌کی چی دافغانستان په معاصر تاریخ کی ساری نلری،دفاشیستی استبداد ډیرو حشیانه ممکن‌ډول اوزموږدخلکو

مال، ناموس اوپت ته لاسی واچول شو له انقلاب سره خیانت ،دخلکو سپکاوی اودامریکا دامپریالیزم په سرکی دتوری ارتجاع دبـی ځنډه تسلط دپاره دزمینی برابرولوله‌فساداو خیانت څخه ددغی ډکی دوری حقیقی ښه وه .

ددی ډیره وه چی افغانستان دامریکا دامپر- یالیزم اوپه سیمه کی دتوری ارتجاع په ننګ جنایت او په وینو ککړی لمنی کـی د لــویدو ډارونکی میدان ته ولویږی څرنګه چی دثور انقلاب په قانونی توګه دعلمی اوانقلابی اصولو پربنسټ بریالی شوی و دافغانستان دخلك دموکراتیك ګوند دتیر ناوړه اووحشیانــــه استبداد په خلاف دمرګ او ژوند په جګړه‌کی په غوڅه توګه ژوندی اوپیاوړی مبارزه وکړه اودخلکو دخلاقه قوت په اتکا او دهیواددازاـ دی بښونکی اردو په مرسته دجدی دشپږمی نیټی د۱۹۷۹ کال ددسمبر د۲۷ نیټی په یا

خون سره دامين جابر رژيم رانسکور کړ •

اوس زمون انقلاب دخپلی بشپړتيا په اصولی او طبيعی بهير روان دی، تاسی دوستان پوهيږی‌چی يوازی په اصطلاح هغه بدلو ن دارتجاعی قواو‌او امپريالزم خوښيږی چی بی لاری وی دانحطاط په لوری روان وی او په پای کی‌په‌خپله دهغوی دلوټوونکو اوغيرانسانی ګټو ساتندوی وی ددغه څرګند کار په‌نظرکی لرلو سره دافغانستان انقلاب چی خپل ځان له فساد او ناولتوب نه پاکوی او دخپلوستر و تاريخی وظيفو په لورګام اخلی نه‌شی‌کولی دنړی دارتجاعی قوتونو اوامپرياليزم غوسه‌او کينه ځانته جلب نه کړی •

دغه ناری سوری چی امپرياليزم اودسيمه‌ی اونړی والی ارتجاع زمون پر خلاف پيل‌کړی دتفنن يااشتباه‌له مخی‌نه دی •

ګرانو ملګرو او دوستانو !

پريږدی يولړ هغه سخت حقيقتو نه چی نن يی په اوسنی نړی کی افغانستان دیوی بين المللی موضوع په توګه رامنځ ته کړی‌یو ځل بيا په ډاګه کړو دافغانستان موضوع یاد دښمنانو په اصطلاح دافغانستان مساله چی نن دارتجاع اوامپرياليزم دډلګه مارو او طاغوتی قواووله خوا ورته لمن وهل کيږی په واقعيت کی له پلمی پرته بل شی ندی دمسائل‌حقيقتونه چيری پټ دی هغو ته يونظر اچوودغه حقيقت له هغه وخته پيل کړی چی په خلورويشتمه کنګره کی دژغورنده سولی پروګرام نړی ته دسولی او بشريت دژغورنی دپلتفورم په‌توګه اعلام شو، پنځه ويشتمی کنګری هغه لاپسی زيات کړ په دی ډول چی دسولی ټول‌نړيوال قوتونو په يوه پراخه نړيواله جبهه کی‌دسولی دوست‌شوروی‌اتحادپه مشری دجګړه غوښتو- نکو قوتونو پرخلاف دسولی په يوه ستر يرغل لاس پوری کړی له هغی نيټی څخه تر اوسه پوری ټول ددی حقيقت شاهدان يوچی په ټوله نړی کی خپلواکی غوښتونکی قوتونو او‌سوله غوښتونکی قوتونو ګام په ګام له‌يوه بريالیتوب څخه بل بريالیتوب ته پرمخ‌کړل او‌دا‌امپرياليزم او‌ټولواکشيزم جګړه غوښتونکی قوتونه اودخلکو ټول دښمنان اودامپرياليستی انحصاراتو ټولی ګټی يی په پرله پسی توګه په شاتلو ته مجبوری کړی •

دامپرياليستی انحصاراتو تور مخو ټولنو چی‌خپلی ګټی‌يی په سولی اوددیتانت په پر- مختګ‌کی په خطرکی وليدلی نوپه توطئو ، دسيسو اونويو رذيلانه تاکتيکونو پی لاس پوری‌کړ، داله هغه وخت سره جوخت دی چی پانګواله نړی دبيکاری او تورم له بحران د انرژی له نشتوالی اوبی وزلی سره مخامخ ده اودپانګه والو هيوادو کارګری غورځنګونه داستثمار او انحصاراتو په مانيو باندی بريد کوی او په ټوله نړی په آسيا، افريقا اولاتين امريکاکی ملی او ټولنيز خپلواکی غوښتونکی غورځنګونه‌نويوبريالیتوبونو ته رسيږی په‌دی وخت کی دبين المللی ارتجاع ستر سرګټس يعنی دامريکا امپرياليزم درايو اخيستنی په غولوونکی او دروغجن ماشين کی دکارتر‌په بدن کی دبشر دحقوقو تر شعار لاندی څرګند- يږی •

په‌دی وروستيو خلورو کلونوکی دی چی بين المللی امپرياليزم په سرکی يی دامريکا

امپریالیزم په تیره بیا چی دبین المللیارتجاع دوه گنډی یعنی واشنگتن اوپیکنگ په گاډه په یوه بین المللی توطئه لاس پوری کوی• د سولی دوستو قوتونو او دیتانت پر ضد په لمسونوبا توطئې او دسیسی پیل کوی •

همغه وچیزیاتو پلموسره لومړی دقهرمانی کیوبا پرضدپه‌لمسونوپیل‌کوی دډوهم سائت ترون خنډوی ناتودسولی اوآزادی‌دڼری پر ضد اوختیځی اروپا پرخلاف دبشری ضد اووحشیانه توغندیودځای‌په‌ځای‌کولوپه‌بنی‌پرشتګ اونوراو نور ځای کوی اوپه دی ډول غواړی چی‌دسولی اودیتانت دقوتونو پرخلاف جنګی لمسو نو ته لمن ووهی •

داارتجاع اوامپریالیزم دی چی دافریقاپه ښکر کی دافریقا دازادی غوښتونکو غورځنګو پرخلاف په عمومی توګه اود انقلابی انګولا، موزمبیق، ایتوپی اونورو پرخلاف په خاصه توګه‌په توطئو او دسیسو لاس پوری کوی خوبیاهم په هر ځای کی لښرمه ډکی ماتی سره مخامخ کیږی خوبله توطئه بکار اچوی داکار دمستبد محمد داود درژیم له وروستیو دووکلونو سره جوخت کیږی چی بیا توطئیه اوفتنه اچونه‌دامریکااوچین دپراختیا غوښتونکی مشری په مرسته ترلاس لاندی نبول شوی نقشه داسی تنظیمیږی چی ارتجاعی یاژاند ـ ارمی‌بندو پاکستان،افغانستان ،ایران، ترکیی‌او دعربو په‌مرتجع‌هیوادودسولی‌اودیتانت‌دقوتونوپر خلاف دملی آزادی غوښتونکو غورځنګوپرخلاف جوړ کړی •

دلته چی دافغانستان قهرمانو خلکو دخپل مخکښ دافغانستان دخلك دډموکراتیك گوند په وجود کی دغه له توطئی ډکه نقشه چی غوښتل یی افغانستان دسولی ضد ،آزادی‌ضد دموکراسی، ضد، او شوروی ضد آله اووسیله کړی په رستاخیزه او قهرمانانه پاخون لاس پوری کړاو دثور داوومی نیټی‌انقلاب‌یی‌بریالی کړاودبین‌المللی اودسیمی دارتجاع‌ډیرهستره توطئه‌په خپل وخت کی کوچنی او ناکامه شو •

خولکه څرنګه‌چی‌ملګری اودوستان پوهیږی چی د امپریالیزم استعماری قوتونه په هرډول شرایطو حالاتواو احوال کی په حیوانی بیلابیلو ماسکونو اوبیلوبیلو سلوګونو سره په تیری لاس پوری کوی کله په قهرمان ویتنام کی په خپلو نیم میلیون وحشی سر تیرو سره برید اوتیری کوی کله په چیلی کی دخپلو نورو قوتونو په مرسته پنوچت پیدا کوی، کله پالپوت منځ ته راوړی اوکله په نورو تاکتیکونو سره له دینی مقدساتو څخه له‌انسانی ډیروشریفو ارګانونوان دبشر له حقوقو څخه‌دلمسونی اوفتنی اچونی لپاره دغه راز ګټه اخلی له دغو توطئو او دسیسو څخه یوه داده چه امپریالیزم او د هغه وحشتناك او شکنجه ورکوونکی سازمان سی،ای• ای په هیواد ونوله هغو څخه زمونږ په ګاونډیو هیوادو کی دانقلابی غورځنګونو اوانقلابی ګوندونو په دننه کی او هغو څخه دافغانستان دخلك په دموکراتیك ګوندکی خپلوجاسوسانو اوتالی څټوته نفوذ ورکړی •

دثور له پرتمین انقلاب وروسته دامریکاد جاسوسی مرکزی سازمان یعنی سی•آی-ای

بریالی‌شوچی‌دخپلو شبکوپه مرسته‌دمتر قی‌او
انقلابی شعارونو لاندی دافغانستان په گوند
اودولت کی خپل یوسخت زړی اوبی رحم‌تالی
ځتی ته نفوذ ورکړی اودخپل تالی ځتی په
واسطه وکولای‌شی دگوند اودولت حاکمیـت
په موټنی توګه تر لاسه کړی سبب‌یی څه‌وو؟
توطئه داوه چی باید دامریکا امپریالیزم
اوارتجاع دنړی له یوی برخی نه دسولی او
دملی اوټولنیزو خپلواکی‌غوښتونکو غورځنګونو
پرضد تیری کوونکی لمسونی ان دجګـــړی
غوښتنی فضا او یوی تیری کوونکی سیاست
پیل کړی او دشوروی اتحاد او نورو سو ـ
سیالیستی هیوادونو اوداسیا، افریقا، لاتینی
امریکا، دټولو مترقی اوملی قوتونو دسوله‌ییز
اصولی سیاست پر ضد په برید او تیری‌لاس
پوری‌کړی. توطئه اونقشه داسی‌وه چی‌دغه‌ټکی
بایدله افغانستان څخه پیل شوی وای پدی
معنی چی غوښتل یی له یوی خوا دفارس‌په
خلیج او په هغو اړوکی چی په عربی مرتجع
هیوادوکی یی جوړی کړی د سمندری تیری
کوونکو قوتونو په واسطه په ایران‌کی دامریکا
دامپریالیزم ضد، اسلامی انقـلاب له مینځـه
یوسی، په پاکستان کی انقلابی غورځنګونه
وټکوی او په منځنی ختیځ کی دخپلو تیلوګټی
تینګی کړی، باید له یوه ټکی څخه کړ کیچ
پیل شوی وای، دغه پلان چی څوګاله دمخه
تنظیم شوی اوپه پای کی‌باید دحفیظالله
امین په وجودکی عملی شوی وای پلان داوچی
افغانستان دووویانیتونو له مخی لو مـړ ی
وریانت چی دافغانستان ختیځی، جنوبی او
جنوب‌لویدیځی سیمی دامریکا په امپریالیزم
پوری تړلی او دچین دلاسس آلی اووسیلـــی
پاکستان ترسلطی لاندی راشی. لویدیځـــی
برخی دیوه بل‌بهرنی **هیواد** ترنفوذ اوسلطی
لاندی راشی، دافغانستان دبدخشان اوشمالی
برخه دلویی غوښتونکی اوشو ونیست چیـن
ترتسلط لاندی ورشی، اوپه کابل کی دامین
تور ترور او زندی کولو رژیم دسی.آی.ای
دالی اووسیلی په توګه شی، پـدی معنی چی
افغانستان نه یوازی دشوروی ضد یوی اډی
په توګه،نه یوازی په سیمه کی بلکی په‌آسیا
کی هم دټولو آزادی غوښتونکو غورځنګونو
ضدبنه غوره‌کړی ، دغه‌پلان دملیونونو افغانو
اومسلمانو انسانانو دوله ییزو وژنو اودسیمی
دجګړی په‌بیه تنظیم شوی وو دوهم وریانت
داوچی دافغانستان په ښکاره او ټشس په‌نامه
خپلواکی هم دافغانستان په نامه دنړی له
نقشی څخه له مینځه لاړه شی اوافغانستان
تجربه اووویشی، یعنی دځمکی په کرمدخپلو-
اك ازاد او مسلمان افغانستان نوم‌پاتی نشی،
په‌ناځوانی‌سرمدسیا استازی حفیظ الله امین
له لاری دافغانستان دقانونی انقلابی شـورا
رئیس له‌وژلو وروسته دافغانستان دخلك‌دمو-
کراتیك گوند دملگروله ستراکثریت سره له
هغو کسانو سره چی په غیر قانونی توګه او
ترځمکی لاندی یی مبارزه کوله، له هغوکسانو
سره چی ښکاره وو خوله‌حکومت اودولت سره
وفادارو او قانونی اکثریت دهغوی په لاس
کی‌وو دجدی له شپږمی څخه مخکی موتصمیم
ونیو چی دغه ستره‌او لویه فاجعه راوړونکی
بین المللی توطئه‌شنډه کړ واو له منځه‌یی
یوسوله‌لدی امله دافغانستان دخلکودټینګـــی

ارادی له مخی دانقلابی شورا اکثریت دمرکزی کمیتی اکثریت اودگوند اکثریت په حفیظالله امین زوروا چاوه چی بایدپه دغه حساس او خطرناك وخت کی چیهره شیبه ددی امکان پهچی افغانستان‌دوینوپه دروبدل شی، دسیمی جگړه پیداشی اوان دیوی نړیوالی جگړی د پیښید وامکان پیداشی باید له‌ستر شوروی اتحاد څخه دموافقی او تړون له مخی مرسته وغوښتله شی .

ملگرو، دوستانو !

ستراو سوله غوښتونکی شوروی اتحاد نه یوازی دافغانستان له خلکو سره دمرستی، نه یوازی دافغانستان دخپلواکی دخاروی د تامیت اوملی حاکمیت ددفاع په لاره کی د دوستی او قهرمانی لاس وړاندی کړ بلکی په سیمه کی دی‌سوله‌او امنیت وژغوره اوستره بین المللی توطئه څای پر څای شنډه‌کړه او له‌منځه یی یووله ، له‌دی امله ده چی ټوله توره بین المللی ارتجاع له‌یوی هستریـــك ناروغی سره مخامخ شویده څکه که‌نن دافغا۔ نستان دنړیوالی پاملرنی مرکز گرځیدلی له دی سببه دی چی دنړی په دی گوټ کی‌زموږ هیواددنه پخلا کیدونکو طبقاتی تضاد ونـــود نیمتی مرکزدی .

دافغانستان انقلاب په‌تیره‌بیا داهغه‌دپښی‌رتیا نوی پړاو چی زموږ دټولنی دانقلابی بدلو ـ نونو په بهیر کی دبریالیتوب، اصولیت او گوند یتوب نښانه‌ده، په سیمه کی دامپریالیزم ستراتیژیکی حریصانه گټی په خطر کی‌اچولی دی، له‌دی امله دامپریالیستانو باداران دخپلو طبقاتی گټو دکمزوری منطق له‌مخی حق لری، ناری سوری وکړی، چیغی ووهی، توطئه وکړی اودسیمی په کار واچوی اوان په لونتوب‌سره څانته اجازه ورکړی زموږ په هیواد باندی رذیلانه تیری وکړی اوزموږ په دغه‌مقدســه خاوره‌کی چی موږ ته دشرف او ناموس په شان مقدسه ده دکړکیچ جگړی اووینوتویولو یوه خطرناکه څاله جوړه کړی خود نړی خورو امپریالیستانو دغه بناغلی‌باید پوه شی چی موږهم حق لرو یوداسی هیواد چی‌دخپلو وینو په بیه مواودخپلو ملیونونو نیگونوڅوینو په بیه‌یی‌تر اوسه ساتلی دی او دثور انقلاب لــه نوی پړاو وروسته موددارپه مارانو او طاغوتیا۔ نوله منگولو څخه ترلاسه کړی دی، دسیمی اوبین المللی ارتجاع له شرمه ډکودغورذیلانه تړیو څخه دخپل شرف او ناموس په توگه دفاع وکړو اوویی ساتو .

دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند په‌خپل ژوندکی تل اوپه هرحال کی دخپلوبین المللی وظیفو په ترسره کولو سره زموږ ملی گټو چی باورلرو هیڅکله دنورو خلکو دملی گټوپه مقابل کی نه‌دی دریدلی له بل هر څه‌نــه لوړی دی اوپدغه لاره کی بی شمیره قربانی ندی سپمولی، نن هم زموږ همدغه گوند دی چی دنسکورید وله‌گړنگ څخه یی دانقلاب‌په ژغورلو او په اصولی لاره باندی دهغه په روانولو سره غوښ‌رول لری اووبه یی‌لری٠موږ دخپلو سرونوپه شنډولودترور اوزندی کولو دویروناوړو شرایطو په زغملو سره ښودلی دی چی موږ له خپل مقدس وطن له خپلـــو زیارایستونکو او ازاد وخلکو او له‌خپل ازادی بخښونکی انقلاب سره مینه لرو، او باید هم

له هغو سره په خپلو وینو او ځان‌مینه‌ولرواو اوسس چې زموږ وطن دامریکا دامپریالیزم په مشرۍ او دپیکنګ له فتنه اچوونکي او مرتد مشر تابه سره‌په‌بې شرمه لاسس یوکولو سره دسیمې دارتجاعي قوتونو دعربو او ارتجاع او صهیونیزم دناولې جبهې له خرګند تیرې سره مخامخ دی موږ حق‌لرو چې دخپلې ملي‌خپلواکي دځمکي دتمامیت اودملي حاکمیت ددفاع په خاطر دافغانستان دده‌وکراتیك جمهوریت او شوروي اتحاد ترمنځ دښه ګاونډ یتـــوب او همکارۍ د۱۹۷۸ کال ددسامبر په‌پنځمه نیټه لاسلیك شو، تړون اودملګرو ملتو د منشور (۵۱) مادې له مخې اودیوه خپلواك او ملي قانوني دولت په نامه زموږله صدیق اوربښتیني عنعنوي ستر دوست یعني شوروي اتحاد څخه دهغو تیریو دله‌منځه وړلو اومخنیوي لپاره‌چې له‌پردیو خاورو څخه زموږ دژوند انه دملـــي ګټوپرخلاف پیل کیږي دمرستې غوښتنه‌وکړو، که چیري موږ دهغو تیریو مخه‌چې زموږدملي ګټو پرخلاف دامپریالیزم اوزموږ دمخالفـــې نړیوالې ارتجاع له‌تعرضي اډې یعني پاکستان څخه زموږ پرخلاف کیږي زموږ دصادق اوستر دوست یعني‌شوروي اتحاد په‌مرسته نـه‌واي نیولې زموږ دهیواد اوسنی نسل اوراتلونکو نسلونو په موږ باندې چې دوطن دناموس او پت ددفاع ستر مسئولیت مویه غاړه اخیستی اودخپل ګوندشته والی په موده کې‌مود ـ اثابته کړی هم ده لعنت وایه او زموږ یوشمیر هغووطنوالو چې ددښمنانو زهر جنو تبلیغاتو تیرویستلي خپل‌ځان یوځل بیادیوی‌ستري‌اونه جبیره کیدونکي فاجعې په اوج‌کې لیده ۰

اوسس انقلابي، مسلمان او قهرمان افغا ـ نستان ټینګ‌اوله‌ډیر کوچنی‌تردداوتذبذب پرته دنړۍ دازادۍ غوښتونکو او مترقي خلکو په خنګ کې ولاړدی داودملي ژغورنده غورځنګو و دوړځ په ورځ زیاتیدونکي لوړتیا په کارکې دکارګري‌بین‌المللي غورځنګ دنفوذاوپرستیژد سنګرونو دټینګتیا او پراختیا اوله هغوهیوادو سره دټینګې دوستی په کارکې چې داستثمار دبیخې له مینځه وړلو لپاره یې‌دټولنې دچټك تکامل لاره غوره کړې خپل وړدول سر تـــه ورسوي،موږ عقیده لرو چې زموږ دپیړۍ‌دامپر ـ یالیستي ضد سترو جریانونو دبیلا بیلوګراد ـ اونو دعمل او نظریووالي دخلکو داقتصادي اوټولنیزې چټکې بشپړتیا دبرۍ اوسمـــولارې چارودپیدا کولو یوډیر ستر اهرم دی ۰

دافغانستان ملي اودموکـــراتیك انقلاب د نړیوال انقلاب نه بیلیدونکې برخه اودنړۍ د انقلابي بهیر جدي اوکلك ملاتړ دی۰ له دې امله دافغانستان دموکراتیك جمهوریت به د دنړیوال انقلابي بهیر دچټکتیا او د خلکـو دامپریالیستي ضدنړی‌شمول عمل‌دیووالی‌دپراـ ختیا اوژورتیا په لاره کې هیڅ ډول هلې‌ځلې ونه سپموي ۰

دثور انقلاب په هماغه‌اندازه‌چې‌دافغانستان دخلکودښې ورځې زیرۍ ورکوی‌دسیمې دسولې اوامنیت په ټینګار اودکړکیچ په لرې کیدوکې هم‌ګټور واقع‌کیدای شي. دثورانقلاب دهمدغه انساني خصلت په پیروی دی چې دروان‌کال دمې دمیاشتې په څوارلسمه نیټه دافغانستان دموکراتیك جمهوریت دولت دهغو لانجو دسوله ییز سیاسي حل دلارې دلتولو په باب چې

دافغانستان اودهغه دگاونډیانو ترمنځ شته، خپل اووه فقره ییز مشخص پیشنهادونــه اعلام کړل، موږخپلو گاونډیو هیوادو پاکستان اوایران ته بلنه ورکړه، زموږدهیواد پر خلاف زموږ له سرحدونو څخه له بهرنه دتیریودپای ته رسولو اوغوښ تضمین په برخه کی له موږ سره داوسنیو لانجو دوروستی حل په خاطر خبری وکړی خو څرنگه چی دسیمی ارتجاعی قوتونه دامریکا دامپریالیزم‌او دچین دشوونیزم په‌لمسون نه غواړی دنړی پدغه‌سیمه کی سوله اوامنیت ټینگ شی او اوسنی لانجی‌له سوله ییزی لاری حل شی، زموږ دپیشنهاد ونو په وړاندی یی‌ښه نیت ونه ښود، موږ اعلام کړه چی دشوروی اتحاد دمحدودو دپوځی قطعاتو دروانیدو مساله هم ددغو خبرو په جریان کی اوزموږ له سرحدونو څخه بهرتیریودبندیدود تضمین په وړاندی کیدوسره حل کیدی شی، سوله اودکړکیچ لری کیدل غواړو، خود سیمی دارتجاعی قوتونو دغیر مسئولانه سلوك دخطر ناکوعواقبو مسئولیت ییخی‌او ییخی په‌خپله دهغوی غاړه دی، زموږ دښمنان پوهیږی اوډیرښــه پوهیږی چی‌یوازی دسوله ییز کار په شرایطو کی دی، چی زموږ انقلاب کولای شی په ښیړه داقتصادی او ټولنیز ی ښمپړتیا پوری ووهی اوهغه کسان چی‌زموږ په هیوادکی یی دانقلاب په‌بری سره خپلی له حرص نه ډکی گټی له لاسه ورکړی او پاکستان ته تللی اوړاټول شویدی په اسانی سره دی ته چمتوندی چی زموږ په هیواد کی سوله وی. له دی‌امله دی چی‌نن پاکستان دباروتو او اورد گدام او په سیمه کی دکور سوزوونکو جگړو داور دبلدیو دیوی خطر ناکی سیمی بڼه غوره کړی‌ده، د نــړی ارتجاعی قــوتونو خپلی ټولی هلی ځلی دپاکستان په‌وجود کی دانقلابی افغانستان د مسلمان قهرمان افغا نستان پر خلاف متمر- کزی کړی دی .

موږله ټولو هغو کسانو څخه چی نن یی دافغانستان پرخلاف له ایونتوب څخه ډکی‌زیات تبلیغات پیل کړیدی پوښتنه کووکله چی‌دامین دډکتاتوری خونړی‌رژیم‌ډله‌ډله شریف‌روحانیون روشنفکران، اووطنپالونکی اوزموږ بی‌گناه خلك نه محاکمی او گناه پرته دپخپل سراعدامونو دغم‌نړی پای په لور بیول چیری وو ، دغه قهرمانان په اصطلاح د بشر د حقو قومدافعین چی د هغو ټو لو جنــا یــا تــو پــه وړاندی یی باید خپل غږپورته کړی وای‌چیری ووولی دغوډنو ورچیانو زموږ دخلکو په‌خونړیو وژنو کی دامریکا ددرانده مسئولیت په باره‌کی چی لاربښودنه یی دهغی دگوډاگیانو او جاسو- سانو لخوا کیده آن یوه خبره هم نه کوله په حقیقت کی دهغو ټولو جنایاتو مسئولیت چی څه دپاسه په یوکال کی دامین ډلی ټپلی‌زموږ دخلکو پرخلاف کړیدی دامریکا دامپریالیزم‌په غاړه‌دی، ددغه ترور اوزندی کولوپخوانی‌رژیم وه‌چی دامریکا امپریالیزم په لاربښوده یی‌په گوندا، دولت کی دننه به غږه غوږه فاشیستی کودتا په سر ته رسولو ددی خاوری هغــه ډیر ښه پتڼن بچیان چی خپل گران سرونه یی زموږ دټولنی دانسان دنیکمرغی لپاره‌گرو کړی ووله مینځه یووړل، زموږ مات اوگوډ اقتصادیی لاپسی شل او شوت کړ، زمــوږ یووالی ته یی زیان ورساوه، دکارگری طبقی

دایډیالوژۍ دبې باوره کولو اودسولې اوسو-
سیالیزم دکمپ بدنامولو په لاره کې یې عمل
وکړ اوزموږ پاك ملي اودمو کراتیك انقلاب یې
دیوی مو قتي مودې لپاره ککړ کړ، زموږ په
سلګونوزره وطنوال بې کوره اودربه دره شول
او زموږپه‌لسګونوزره بې‌ګناه‌وطنوال‌په‌وینولیت
پیت شول ، زموږ دوطنوالومیندو خویندو او
میرمنوتیکرې‌یې، په فریادونواواوښکواووینو-
ولړل ،زموږ په‌هیوادکې یې‌دویرې، ترور او
زندې کولو فضا رامنځته کړه چیرې‌وو ، په
اصطلاح ریاکاره انسان دوستان چې داعتراض
چیغه یې دنړیوالو غوږ ته ورسیږي.

دسیا دقربانیانو څیګر سوزوونکې چیغې‌یې
لکه چې نه اوریدې اونن ایاد سر پەسترګونه
وینې چې یاهم همدا امپریالیزم، همدغه د
امریکا داستخباراتو مرکزي سازمان سي.آی.
ای دی چې زموږ په هیواد کې دخپلو سیمه
ییزونو کرانو په مرسته ښونځی او جوماتونه
سوزوي دښونځیو بې ګناه نجونې مسموموي،
هټې او کروندې سوزوي، زموږ خلکو ته‌ګوا-
ښونه کوي، زموږ دخلکو په پټ او ناموس
باندې په بې شرمانه او رذیلانه تو ګه تیرې
کوي او زموږ دخلکو دارام او سوله ییز ژوند
خنډ کیږي، ددغو ټولو بشري ضد جنایتونو
مسئول دامریکا امپریا لیزم دی.زموږد انقلابي
دولت سیاست ددموکراتیکو اصولو پربنسټ
له خلکو سره دنرموالۍاو تفاهم اوزموږدخلکو
دربښتینې دښمنانو پرضد په نه ستړې‌کیدونکې
مقاومت ولاړدی، موږ دغه اصولي لارې ته په
ټینګه توګه او مبارزې سره دوام ورکوو، زموږ
دګوند او دولت اصولي او نوی طراز سیاست
په پوره صداقت سره دخلکو اووطن ته دبې
امانه وفاداری اوخدمت اوزموږدخلکو اودګران
وطن انقلابي افغانستان ددښمنانو دپوره شړلو
دفع کولو او له منځه وړلو له مخې لمګه‌دغره
پەخیر ټینګک ولاړ دی اووی‌به، زموږ انقلابي
دولت دهغې روحیې آرامې دمنځته راوړو په
خاطر چې زموخلك ورته کلك ضرورت لري،
ددموکراتیکې فضاد ټینګښت او ددموکراتیك‌او
انقلابي قانونیت دتعمیل او موږ دخلکو دمذهبي
عقیدو او ملی‌رواجونو داحترام لەلاری‌دوامدا-
اری هلې ځلې کوي .

دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت اساسي
اصول زموږ دغه معتبره ملي وثیقه چې دافغا-
نستان ددموکراتیك جمهوریت دموقتی اساسي
قانون حیثیت لري دخلکو ددموکراتیکې ازادۍ
دحقوقو دتضمین اوداسلام دمقدس دین اود
خلکو دودونو، عنعنو اومذهبي عقیدەتەداحترام
په لاره کې پوره صراحت لري .

دافغانستان انقلابي دولت په هیوادکـــې
ددموکراتیك قانو نیت له ټینګښت ژور تیا او
عامو لوسره جوخت دخلکو دژوندسطحې په
لوړولو او زموږ دملي اقتصاد په چټکې ودې
کې ګټور ګامونه اوچت کړی‌اواوچتوي‌یی،مو ږ
غوڅ تصمیم لرو چې ددموکراتیك اوانقلابـــې
قانونیت دځلانده څراغ په رڼاکې نوی ټولنه
جوړه کړو اودښمنان بەونه کولای شی‌چەموږنه
دغه‌مقدسې لارې څخه واړوي .

موږ ددموکراتیك قانونیت او ددموکراسی‌له
اصل څخه مجرد اوانتزاعی اوګډوډی غوښتو-
نکې برداشت نه لرو موږ دموکراسي دهغـې
په‌دمشخص خصوصیتاو اورا ګانیك پیوند یاد

خپلی ټولنی پهاوسنی مشخص بشپړ تیاییـی پړاوکی په نظرکی نیسواویوازی په همدغـه راز درك سره دی چی ربښتینی دموکراســی اودافغانستان دزیاراېستونکو خلکو حاکمیت عملی کوو، په اوسنیو حالاتو او احوال کی اوزموږ دانقلاب دملی او دموکراتیك ماهیت‌له مخی دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند پهدی عقیده اری چی ددموکراسی دتعمیل ضروری شرط دټولو ملی او دموکراتیکو قوتونو دبرخی اخیستو دتضمین په غرض دامکاناتو مینځته راوړل چی زموږ دټولنی دارتجاعی ضد اوامپرـ یالیستی ضد بیلابیلو طبقو دقشرونو نمایندگی کوی، دسر نوشت دټاکلواو ددموکراتیك ملی سیاست عملی کول دی

دپلرنی وطن دملی پراخی جبهی طرحه چی زموږ دملی اودموکراتیك انقلاب دسرته رسولو دخاروی پت اودوطن دناموس اودملی حاکمیت ددفاع پهلاره‌کی زموږ دټولنی‌ټول دمو کراتیك قوتونه، سازمانونه اوټولنیزی ټولنی پکی‌دی ددیمو کراسی دتعمیل دلوړ طراز ټول ښکارـ ندوی ده .

موږ باورلرو چی دپلرنی وطن دملی‌جبهی په ټینګښت سره دانقلابی دولت ټولنیزه‌اوه اودهغی دانقلابی عمل‌دامکاناتو بنسټ پخیږی.

زموږ په هیواد کی دپلرنی وطن دملی‌جبهی دجوړیدلو او پراختیا جریان زموږ دخلکو د سترو پرگنوپه منځ کی ورو ورو او گام په‌گام خپله لاره خلاصوی .

ملگرو او دوستانو !

دپیښو جریان او دټولنیز ژوند بهیر دثور انقلاب دبشپړ تیانوی پړاو له پیل څخه یعنی دتیر کال ددسمبر له (۲۷) نېټی څخه تراوسه ددغه‌کارښکارندوی دی چی په‌ټوله نړی کی د سیاسی پوهی په سطحه کی دتجانس لــه نشتوالی او له هغو ستونزو سره سره چی د تیرو رژیمونو میراث دی او دارتجاعی تورو قوتونو دپرله پسی خنډونو، دسیسو،توطئـو او تیر یوسره سره چی‌دامریکا دامپر یالیزم‌په لارښوونه کیږی، دافغانستان دخلك ددموکراـ تیك گوند اودافغانستان دمو کراتیك‌جمهوریت وکولای شول دعلمی ټولنپو هنی په اساساتو دتکی دمعقول، اصولی اوانسانی سیاست په غوره کولو سره دورانکارو، غلو دامپریالیستی شبکو دجاسوسانو، لارووهو تکو او لوټمار و دتجریدولو اودخلکو دپرگنو په منځ‌کی‌په ژوره توگه ددولت دسیاست دتثبیتو لواو په‌تیره‌بیا ددموکراتیك او انقلابی قانونیت په نسبت‌د ښه باور دفضا اودپلرنی وطن دملی جبهی‌د پراختیا لپاره دعینی پراخو زمینو په مینځته راوړ لو بریالی شی .

دسړی وژونکو،غلو، جنایتکارانو ، لاروـ هونکواو دپردیودتالی ختواودجاسو سانودپرـ له‌پسی تجرید اوله منځه وړلو بهیر دوام‌لری. اوس موږ دداسی کسانوپه وړاندی ولاړ یو چی دخلکو ددفاع دادعاه څ ټول واك نلری، نوله دی امله داسی کسان دی چی له بهــر څخه گمارل شوی، دپت، نامــوس، وطن‌او دافغانستان دخپلواکی ددښمنانو لخوا گمارل شوی، موږ مجبور یوچی له خپلو پولونه اخوا په تیره بیا له پاکستان څخه دشویو تیریوپه په مقا بل کی په جگړه لا س پــــو ری کړو، موږ دیوی نااعلام شوی لوټماری جگړی

په وړاندې ولاړیو چې په هغې کې دامریکا دامپریالیزم، داسرائیلو دصهیونیزم، دانگلیس دامپریالزم ، دسادات درژیم دعربو دتورې ارتجاع اودپیکنگ دپراختیا غوښتونکې ناولې مشرتوب په وینولړلې لاسونه وینو داسلام ، اسلامیت اومسلمانانو ددروغجنې دفاع په نامه دپاکستان له لستو نې څخه راوزي .

دوستا نو داند ونیز یا خو نړي وژ نې دایاد کړي چې دامپریالیزم تالی څټو په سلگونو سره پتمن مسلمانان په وینو کې ډوب کړل. دریاد کړی داسرائیلو دصهیو نیستا نو لخوا کړې . په عر بي مقد سو هیوادونو باندې د صهیونیستي اسرائیل بښوونکې، دصهیونیانو په ذریعه دفلسطین دعربو خونړي وژل اود لبنان تراژیدی چې ددغو ټولو ترشادامریکا نړۍ خوارامپریالیزم ولاړواوولاړدی، خونړی تل دریاد کړی، دسادات لخوا د عر بو دگټــو معامله دریاده کړې اوداستعمار او امپریالیزم بې شمیره هغه جنایتونه په دریاد کړی، چې په سلږنوسلونوکالونه یې په مسلمانوهیوادوکې په وحشیانه اوناوړه بڼه کړیدي، آیا دخندا وړنه ده چې دغه انگلیسي امپریالیزم، دامریکاد امپریالیزم، داسرائیلو صهیونستان اودسادات په شان عرب پلورونکی مرتجع ټولني په اصطلاح عربي مسلما نــا ن چــې د عــر بو مسلما نا نو د ز یا ر ا یستو نکو خلکــو په سلو نــو ملیاردو ډالره شتمنی دلویدیځوامپریالیستــې انحصاراتو په زیرموکې وراچوي، مگر بیا هم په بې شرمې سره داسلام ددفاع لاپې کوي.

دوستانو، ملگرو !

ثبوت ته اړه نه لري چې دافغانستان پتمن، آزاد او زیارایستونکې خلك دنړۍ له ډیرو ربښتیانیو مسلمانانو څخه دي. پوښتنه دلته ده چې نوولې امپریالیستي ارتجاع دهغوی گوډ اگیان اومزدوران زموږ دزیارایستونکو مسلمانانو ترمینځ دبې اتفاقي، سرې وژنې، ورورووژنـــې اووحشت اوویرې اچوني، کـور ورانوونکي جگړې ته لمن وهي، په داسې حال کې چې د اسلام اصول په ډاگه حکم کوي چې مسلمانان یوله بل سره برابر اوورونه دي او بشریت باید په سوله، صفا اودوستي کې ژوند وکړي آیــا دخنداوړنه ده چې دامریکا، دچین شوونیزم او دپاکستان پوځی مرتجع رژیم چې په خپله د پاکستان دپتمنو خلکو حقوق او ازادي پــه وحشیانه توگه ترخپلو پوځې پوندولاندې په پښوکې موږی زموږ داسلامې هیواد د مسلمانانو ترمنځ بې اتفاقي اچوي ورانکاری، غله لاروهونکي اوسرې وژونکی زموږ دخلکو په سر، مـال، ناموس اوشرف باندې دتیري لپاره بیا هم په بې شرمانه توگه څرنگه کولای شي داسلام او داسلامیت ددفاع خبرې وکړي هغو دخپلـــو غرض لرونکو او خائنانه مقصد ونو لپاره د اسلام په نامه او په اصطلاح دمسلمانو دمشرانو په نامه، له نوم ورکواوبې وطنه کسانو څخـــه استفاده کوي، چې ټول دغه مشران په خپل هیوادکې زیاتې جرمې سابقې لري او که دافغا- نستان دخلکو دمحکمې په لاس ورشي په ډیره سخته جزابه چې وروستي به یې اعدام وي، محکوم شي. داپه اصطلاح دامپریالیزم اودامریکا- یې، پاکستانې ساواکې اودافغانستان دنورو دښمنانو دجاسوسې دسازمانونو دکسبې جنایتکا- رانو اوجاسوسانو جعلې اوله ځانه جوړ شوي مشران دي اواوس داپه اصطلاح نوکر صفته

مسموم او ساختګی مشران دانسانی ضد، اسلامی ضد او ملی ضد اودموکراتیك ضد سیاستونوپسی په ریاکاری سره روان دی •

امپریالزم دمسلمانو زیارایستونکو پرګټو دغه خونړی دښمن دی اووی به، دغه وطن پلورونکی چی ځان یی دامپریالیزم په‌لمن‌کی غورځولی دی، اسلام او اسلامیت اوربښتینو مسلمانونو ته ستر خیانت کوی،لری نه‌ده‌چی دافغانستان دخلکو او تاریخ لخوا محاکمه شی •

دهغوی دغه ستری ګناوی، څه دخلکو په وړاندی او څه دخدای په وړاندی دبخښنی وړنه دی، دزیارایستونکو خلکو له هغو څخه دنړی دمسلمانانوربښتنی دوستان هغه کسان دی چی دهغوی دحیاتی ګټو دفاع کوی اود امپریالیزم پرخلاف چی داوږماری اوچور پر بنسټ ولاړ دی اودخپل شته والی لپاره ټول په تیره بیاله هغوڅخه‌مسلمانان یوشان‌لوټوی، جګړه کوی•

ملګرو او دوستانو !

یوه اسانه پوښتنه تاسو وایاست په نړی کی کوم ستر او سوله دوست قدرت دقهرمان فلسطین دمسلمانو خلکو دفاع کوی او بر عکس داسرائیلو صهیونیزم، دغه داسلامی نړی دښمن‌ته‌څوك قوت‌اوقدرت‌ورکوی،چی‌دعربو عسکری مسلمانان په وحشیانه ټوګه وژنی اوبی کوره کوی یی او مقدسی خاوری‌یی په وحشیانه توګه نیسی•

زمونږ خلك‌ښه پوهیږی چی زمونږ دمسلمانو خلکو ربښتینی دوست شوروی اتحاد زمونږ د مسلمانو خلکو له پخوانیو دښمنانو سره د مقابلی لپاره دمحدودی پوځی مرستی په ورکولوسره په خومره ستری او شریفی‌فداکاری لاس پوری کړیدی او په دغه مقدس کار کی‌یی مونږ ته دوروری مرسته رسولی ده •

دهغه مستقیمه نتیجه په هیوادکی دحالاتو دعمومی حالاتو په ټینګښت او دپردیوا وزمونږ دملی ګټو ددښمنانو لخوا دبرابر شوی تیری پرخلاف په بیلو بیلو جبهو کی په بریالیتوب کی وینو •

په بیلوبیلو جبهو کی ددغو بریالیتوبونواو دښمنانو په شاتمبولو له امله ده‌چی‌داامکان پیدا شو چی دشوروی دپوځی قواوویوه برخه چی په موقتی توګه زمونږ هیواد ته زمونږ له خلکو سره دمرستی لپاره راغلی وه بیرته‌خپل ستر پیاوړی ټاټوبی ته بیرته ستانه شی •لکه چی څوځو ځلی اعلام شویدی‌افغانستان ته دشوروی اتحاد پوځی محدودقطعات یوازی له بهر څخه دتیری دله منځه وړلو په خاطر دافغانستان دديموکراتيك جمهوري حکومت دپرله پسی غوښتنوله مخی لیږل شویدی اودثور له انقلاب څخه وروسته یوه داسی مرسته څوځو ځلی غوښتل شوی وه او ددغی مرستی غوښتنی ددولتونو ترمنځ‌حقوقو له پلوه بیځی قانونی اواصولی اړخ درلود او لری یی •

مونږ یوځل بیا ثابته کړیده چی‌مونږ دهیوادونو ترمنځ دسوله، دکړکیچ دله منځه تلل او ښه تفاهم غواړو، مونږ په پرله پسی او په

غوښه توګه دسوله ییز ګډ ژوند اودناپیيلتوب په غورځنګ کی د بر خی اخیستلـو سیاست تعقیبو و •

دغه سیاست زموږدملی او دیموکراتیـــك انقلاب له طبقاتی ماهیت څخه‌رامنځته کیږی موږدآزادی غوښتونکو اوملی غور زنګونو پوره ننګه اوملاتړ کوو، موږنه یوازی دخپلو ملی ګټوود ساتنی دپاره ، بلکی دټولو خلکو دګټود دفاع دپاره مبارزه کوو ، یوګــډ سرنوشت ټول آزادغوښتونکی اومترقی غږرځنګونه په‌نهـ شلیدونکی توګه سرنښلوی ،له دی امله موږ یقین لرو چی دانقلابی افغانستان دوستان اوزموږ همرزمان دافغانستان پرخلاف تیری، دنړیوالی انقلابی‌بهـر پرخلاف تیری بولی او په تیره دآسیا اوافریقا په پتمنو خلکوباندی دتیری په حکم ګڼی، له دی‌امله بایددارتجا عی قوتونوپه‌وړاندی دخپل‌عمل دیووالی سنګرنو- رشم‌سنګراوپیاوړی‌کړو زموږپه اوسنی‌نړی کی دارتجاع اوترقی ترمنځ مبارزی په‌پراخه توګه نړیوال خصوصیت غوره کړیدی •

موږ به دخلکو ترمنځ دپیوستون دغورځنګونو په مرسته اودافغانستان له خلکو سره ددغو غورځنګونو په معنوی مرستو سره وکــولای شو چی دارتجاعی قوتونو کلابندی څه له مادی اوڅه له معنوی او تبلیغاتی پلوه‌ماته‌کړو•

زموږ له تاسو ګرانو دوستانو څخه چــی زموږهیوادته راغلی یاست څه‌نه پټه و، تاسو زموږ دهیواد په څینو ولایتونو کی زموږ د ټولنی اوسنی واقعیتونه دسر په سترګوولیده• موږ دهیواد دروازی تل په مینه او میلمه پالنی سره ستاسو په مخ خلاصی دی زموږ له انقلابی ولولونه ډك غږ دنــړیوالو غــږ ته ورسوی، دوستانو زموږ دهیواد اوانقلاب په خلاف دارتجاعی اوامپریالیستی ټولنو دتبلیغاتو ګټی وریځی، لوګی اوڵړی څیری کړی •

دافغانستان خلك زموږ وروستی نسلونه به چی په یقینی توګه به نیکمرغه وی اوپه بوره سوله کی به ژوند وکړی دسولی او عدالت اودخلکو دتفاهم تاسواستازیو، ګرانی خاطری له‌مینی، مهربانی اووروری څخه‌په ډکوزړونو کی وساتی •

وروڼو ، دوستانو، دآسیا او افریقا دسترو خلکو استازیو !

نړیوالوته وواياست چی نن دمسلمانانو، قاتلانو په ریاکاری سره له اسلام څخه‌ددفاع جامی اغوستی، هغوی ته وواياست چی انقلابی اوقهرمان افغانستان د امپریالیستی تیری په خطرناکه کړی کی پروت دی اوکه دشوروی- اتحاد دمحدود وپتمنواو قهرمانو قواوشته‌والی نه‌وای، نن به زموږ هیواد په امپریالیزم او دسیمی دتوری ارتجاع په وینو ککړی اوناولی خولی ته لویدلی وای، هغوی ته وواياست ، چی آزاد اومترقی افغانستان په اوچت سراود هیواد اودهغه دزیارایستونکو خلکو په مینه سوربیرغ په لاس ، په وینو لړلی نن خو په زړو زړه‌کی له ستری هیلی اوپه کلك او نه ماتیدونکی عزم سره دانقلاب په پراخه لویه لارروان دی، په دغه آزادی بښونکی پراخــه واټ کی به دسباورځی نیکمــرغه خوشحالــه نسلونه ډاډه اوارام ګام واخلی، اودحق او

عدالت ،تاسو ملګرودرښتینی انسانیت دلاری تاسی سر سپارلو ته به تاوده اوله ولولونه ډك درودونه واستوی .

ګرانو دوستانو !

نړیوالوته ووایاست چی دافغانستان له انقلاب څخه چی زموږد ټولنی او باړلی انسان او انسانیت دله مینځه تلوله ویرونکی ډند څخه ژغوری پرته له ویری او په ارام وجدان سره دفاع وکړی پتمن نړیوال به په خپله دغه دفاع کی هیڅکله پښیما نه نشی .

موږ له دغی دوستانه جرګی څخه چی دمینی اودوستی زیاتی نښی پکی پرتی دی نه یوازی دی ته سترګی په لاریو چی دافغانستان له خلکو سره دپیوستون غورځنګونه پراخه او ټینګ کړی بلکی په راتلونکی کی دنړی د ټولو خلکو ترمنځ د دوستی دټینګیدو دلارو چارو په برابرولو کی په راتلونکی کی اوچت کامونه پرمخ واخلی داوسنی نړی ډیرډیرپتمن شمار سوله اودنړی دخلکو اوملتونودوستی ده.

ګرانو دوستانو !

یوځل بیا زموږ دخلکو په نسبت ستاسود مبارزی غوښتونکی پیوستون دخرګندونی له امله خپله زیاته مننه او قدر دانی څرګندوم

– ژوندی دی وی دآسیا اوافریقا ملی او ټولنیز ټینګ انقلابی پیوستون .

–ژوندی دی وی دآسیا اوافریقا دخلکو د پیوستون سازمان .

–ژوندی دی وی داسیا، اوافریقا ملی او ټولنیز آزادی غوښتونکی غورځنګونه .

–په ټینګ ایمان، په غوڅه او مسلمه توګه، دارتجاع اوامپریالیزم په خلاف عادلانه مبارزه کی بری دافغانستان دقهرمانو او آزادو خلکو په برخه دی .

# دافغانستان ټول خلک کارګر دي که بزګر ټول بالقوه دافغانستان مدافع سربازان دي

دافغا نستان د دموکراتیک جمهوري ګارد منصبدارانو او سر تیرو ته په خطاب کې د افغا نستان دخلك دموکراتیك ګوند دمرکزي کمیټې دعمومي منشي دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت دانقلابي شورا درئیس او صدراعظم ببرك کارمل دوینا متن :

۱۹ر٤ر۱۳۵۹

دهیواد زړورو سرتیرو ، دانقلابي اوقهرمان افغانستان قهرمانو او وطنپالو منصبدارانو !

لومړی اجازه راکړی چې د افغا نستان د خلك دموکراتیك ګوند دمرکزي کمیټې دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابي شورا دافغانستان ددموکراتیك جمهوري حکومت اوهم خپل دزړه له کومې تاوده سلامونه دهیواددپت او ناموس اودثورانقلاب تاسو کلکو مدافعینو ته څرګند کړم .

ملګرو ، دوستانو دافغا نستان زړورو او قهرمانو منصبدارانو او سر تیرو !

خبر یم چې تاسې د رنځ اوارتیاوزامن ، د زیار ایستو نکو کار ګرانو او بزګرانو زامن تاسې روښنفکره او وطنپالــونــکي منصبداران خبر یاست چې دتاریخ په بهیر کې بشریت او دولتونه ټل تردوه ډوله بیرغ اردویاالبنکر یا نظام لاندې راغلي دي .

په یوه خواکې دظلم اوستم بیرغ، دجبارانو بیرغ ،دحاکمو ستمګرو او استثمار ګرو طبقو بیرغ ، په بله خواکې دزیارایستونکو سترو پر ګنوسور او انقلابي بیرغ تل په تاریخ کې هغه کسان چې دظالمو او جبارو طبقو او حکومتونو تر بیرغ لاندې وواتل د هغوی ستر قوتونه دبشریت دسترو پرګنو د ټکولو دپاره په کار اچول شویدي خه په نورو هیوادو او خه زموږ په هیواد کې دغه تاریخي تجربې شته .

لری نه څو، پهدوهمه عمومی جګړه کـــی دهټلری فاشیزم په نامه یو تور امپریالیستی قوت منځته راغی ، په هغه وخت کی دمحاربوی قو اوو له نظره پهنړی کییوډیر قوی‌اوپیاوړی اردو وو خو ترهغه بیرغ لاندی چی هغـــوی جنګیدل دظلم او ستم بیرغ و ، خو دغه‌وحشی اردو دشورو ی اتحاد دقهرمان اردو په وړاندی چی آزادی بښونکی اردو او دخلکو اوو ګړوپه خدمت کی وه له موقتی بریا لیتوبو نو سره سره دتل لپاره رانسکور شو .

همدارنګه خامخا زموږ نسل به درادیو څپو او جریدو له لاری خبروی چی دامریکا دامپر-یالیزم نیم ملیون وحشی عسکرو پر قهرمان ویتنام باندی یرغل وکړخود ویتنام د قهرمانو خلکو او دویتنام دآزادی غوښتونکی اردو په اراده ټول نیم ملیون اشغالګراوږ غلګرعکسر اوپو ځیان ورك او له مینځه لاړل اودنړی ډیر لوی قدرت یوه کوچنی هیواد په ګونډو و کړ .

همدا رنګه چین په خپل‌ټول قدرت سره چی دزرو میلیون وګړو ادعا کوی په یو میلیون



دافغانستان دخلك‌دډموکراتیك‌ګوند دمرکزی‌کمیټی عمومی منشی دانقلابی شورا رئیس او صدراعظم ببرك کارمل‌دافغانستان د دموکراتیك‌جمهوریت دګارد دتنو یرخونی دلیدلو په وخت کی .

عسکرو سره د قهرمان ویتنام په خاوره تیری وکړ خوهغو افسر انو او سرتیرو چی دقهرمان ویتنام دخلکو په خدمت کی ووهغوی پـــه قهرمانانه توګه له خپل هیواد څخه وشړل۰

راشی زموږ د هیواد وياړلی تاریخ ته‌چی دافغانستان ټول خلك کار ګردی که ‌بزګـــر اووطن پال روشنفکران ټول‌بالقوه د افغانستان مدافع سر بازان دی، دغه‌راز د افغانستان‌د اردو منظمو قواوو دری څله په نولسمه پیړی کی دنړی ستر قدرت نیوونکی پوځ له خپل هیواد څخه وشاړه چی ستاسی د پلرونو دغه حماسه د هغو افسرا نواو سر تیرو قهرمانی چی شهیدان شوی دی زموږ د هیواد په‌تاریخ کی‌اوآن دنړی په تاریخ کی‌همیشنی دی۰ همغه سرتیری او افسران زموږ پلرونه ،غازیان‌او وطن پالونکی ووچی د افغا نستان خپلواکی‌یی دغازی امان الله په وخت کی داکتوبر له‌انقلاب وروسته دخوا ن شوروی اتحاد په ملاتـــړ دافغانستان د قهرما نو خلکو په نه ماتیدونکی مرسته او اراده تر لاسه کړ۰

دوروستیو شپږ و اووکلو نو په ترڅ کـــی دادافغانستان افسران او میړنی او قهرمان اردو چی دسلطنتی وروست مستبد رژیم‌یی‌په بی‌سارو قهرمانیو او حماسو سره رانسکورکړ بیا هم دغه قهرمان زړورپوه او بالقوه افسران اوزړور سر تیری د رنځ دغه بچیان دکارګری طبقی دغه بچیان ووچی دداود اشرافی مستبد رژیم یی رانسکور کړاو د ثور انقلاب بیـــرغ یی اوچت کړکه څه هم دثور انقلاب د امریکا دامپریالیزم دسی،آی،ای د جاسوس او باندد تسلط او نفوذ له امله په موقتی‌توګه بی لاری شو او په پوره خواشینی سره‌چی په‌دی‌جریان کی‌د افغانستان انقلابی اردو آزادی بښونکی قهرمان اردو اوه څله تصفیه شو او ډیر ښه سربازان او ډیر ښه افسران د افغانستان‌د قهرمان اردو له لیکو څخه وویستل شول‌اود افغانستان د اردو محاربوی ستر پوځ یی‌په قصدی او عمدی توګه دسیمی دتوری ارتجاع اود بین المللی ارتجاع په سرکی د امریکاد امپریالیزم اود چین‌پراختیاغوښتونکی ددستور اوپلان له مخی کمزوری کړ، زموږ په اردویی چی‌د خلکو پت ، ناموس ، خپلواکی او وطن میړنی مدافع ؤ بریدوکړ او هغه وخت یی‌د هغوی دټولودمورال محاربوی روحیه تر یوی ټاکلی اندازی پوری کمزوری کړه ، خوله‌دی سره سره چی د امین باند د خپلو بادارانـو په‌لارښودنه د افغانستان د قهرمان او میړنی اردو پر ضد وکړل بیا هم د افغانستان‌قهرمان اردو ووچی موږ وکولی شول‌دخپل ستر دوست شوروی اتحاد په مرسته‌دخپل هیواد دخپلواکی اودځمکی دحاکمیت دفاع وکړو ۰

بیا هم زموږ د شهید انو د ګوند، زموږ دقهرمانانو د ګوند د افغانستان د خلـــك‌د دموکراتیك واحد ګوند په مشری د افغانستان دآزادی بښونکی اردوپه مرسته او د مترقی‌او وطن پالوقوتونو په اراده او اتکا د افغانستان دخلکو په اتکا بریالی شو چی د ثور انقلاب اوخپل هیوادچی دله منځه تلوکندی ته نژدی شوی ؤ د جدی دشپږمی نیټی په پا څون سره وژغورو ۰

زړورو سر بازانو قهرمانو افسرانو ! تاسی ټول خبر یاست چی موږ د نااعلان شوی جنګ

په‌وړاندی د هغو خاینو دښمنانو په وړاندی چی په رذیلانه توگه یی په نړی کی له امریکا نه‌تر چین پوری یوه نامقدسه جبهه جـوړه کړیده او د پاکستان له خاوری نه استفاده کوی مخامخ یو، د خپلواکی د خاوری د آزادی پت،د خلکو د ناموس او هیواد د دفاع ډیره درنده اوډیره ستره وظیفه همدا اوس ستاسی‌د افغانستان د ځوان‌قهرمان اردو په اتکا دگوند او دولت په غاړه ده .

په وروستیو شپږ و میا شتوکی دشوروی اتحاد په بی غرضودوروولی او سترو مرستو سره موږ وکړ ای شول اردو چی د حفیظ الله امین دتوطئی او دسیسی له مخی د موراللـه پلوه د محاربوی قدرت له پلوه کمزوری شوی وبیاپه ډیر لوړ ډول په ډیره زړه ورتیا ژوندی کړو .

نن گوند او دولت په ټینگ ډاډپه پوره ایمان ډاډه‌دی چی زموږنوی د آزادی بښونکی اوځوان اردو په قدرت سره کولای شی دخپلو سترودوستانو شوروی اتحاد په مرسته اود افغانستان د گوند ، اردو ، دولت او خلکوپه اتکا هغه ډیر ستر قدرت چی‌که وغواړی‌زموږ په‌شرافتمند مقدس هیواد کی یا زموږ پــه ناموس باندی هم یوه لویښت تیری وکـړی داسی غاښ ماتوونکی ځواب به وویني‌چی په نړی‌کی هتلری فاشیزم په ضد په دوهم‌عمومی جنگ‌کی‌ؤ که په ویتنام کی‌او که په نــورو هیوادو نوکی د آزادی بخښونکو قوتونو دغــه شان کلک سوك نه وی خوړلی دی .

نه غواړم تردی زیات ستاسی د تکلیف او زحمت سبب شم، زه د افغانستان د آزادی‌بښونکی اردو ستر ویاړلی پرتمین او زیات بریالیتوبو نه غواړم .

# ما تقویه هرچه بیشتر قدرت دفاعی کشور خود را تامین مینماییم

بیانیه ببرک کارمل منشی عمومی کمیته مرکزی حزب دموکراتیک خلق افغانستان، رئیس شورای انقلابی وصدراعظم جمهوری دموکراتیک افغانستان در کنفرانسیکه به خاطر ارتقا موثریت و فعالیت وزارت خانه ها، ادارات وموسسات دولتی جمهوری دموکراتیک افغانستان در تالار سلامخانه بر گزار شد • ۱۳۵۹ر٤ر۲۲

قبل برا اینکه به موضوع بپردازم علی الوصف اینکه رفیق کشتمند راجع به ماشین اداره دولت افغانستان تذکرات لازم را ارائه کردند، باز هم ضرور میدانم که راجع به دواصل باختصار وبه صورت مشخص تذکراتی را به پیشگاه رفقا و دوستان ارائه کنم •

این دواصل ، دواصل مهم انقلاب ودولت است ، انقلاب به اختصار و موجز چیست: سر نگونی یك طبقهٔ حاکم و بدست گرفتن قدرت حاکم از طرف طبقه یا طبقات دیگر . از همان مرحله که ملکیت بو جود آمد، طبقات ستمگرو استثمارگر برای حفظ مصالح و منافع خو د ماشین دولت را ایجاد کردند • در طول تاریخ وانقلاب ها دولت یك طبقه را سرنگون ساخته ودولت طبقه و طبقات دیگری را بوجود آورده است ، باین معنی همیشه دولت ماشین ز جر دهنده و شکنجه دهنده طبقات اقلیت استثمار گرو ستم گر علیه طبقات اکثریت توده های مردم بوده تا اینکه نخستین بار در تاریخ بشر یت انقلاب اکتوبر ماشین کهنه زجر دهنده طبقات اقلیت ستمگرو استثمار گررادر جهان سر نگون ساخت وحاکمیت اکثریت زحمتکشان را به جهانیان اعلام داشت ، از آن تاریخ که شصت ودو سال میگذرد درکشورهای زیادی ماشین زجر دهنده اقلیت درهم شکست وماشین اداره دولتی اکثریت زحمت کشان استقرار یافته است •





ببرک کارمل منشی عمومی کمیته مرکزی حزب دموکراتیک خلق افغانستان ، رئیس شورای انقلابی و صدراعظم جمهوری دموکراتیک افغانستان هنگام ایراد بیانیه پر شور وانقلابی شان در مراسم گشایش کنفرانس ارتقاء موثریت و فعالیت وزارت خانه ها، ادارات و موسسات دولتی که در تالار سلاخانه بر گزار شد ۰

و نمایند گان اولین کنگره کار مندان طبی افغا نستان و دیگر کنفرا نسها و جلسا ت اجتماعی و فرهنگی سخنرا نی های فراوانی نموده اند .

حکو مت جمهوری دمو کراتیك افغا نستان در سا حهٔ تعلیم و تربیه نیز یکتعداد فیصله های مهم و ساز نده و خلاق اتخاذ نموده است تدابیر جهت تعلیمات حتمی و رایگان به زبان مادری اتخاذ گردید .

مجازات جسمی در مکا تب از بین برده شد مکا تب جدید اعمار میشود کدر های معلمین تر بیه می شود در سراسر کشور کورسهای محو بیسوادی فعال است شبکه شفا خانه و مو سسات طبی تو سعه یا فته و انواع کمك های طبی تکامل می یابد قدم به قدم جهت کمك طبی رایگان شرایط مهیا میگردد .دولت مو سسات طبا بت خصو صی را نیـز تحت کنترول خود گرفته است که این امر درمقررهٔ طبا بت در کلنیك های خصو صی منعکس گردیده است امپر یا لیزم امریکا . عظمت ـ طلبان تو سعه طلب پیکن ، ارتجاع منطقه واجیران آنها قصد دارند از دین مبین اسلام به نفع اهداف شوم خود استفاده نمایند و مسلمانان شریف افغا نستان را به گمرا هی سوق دهند بدین طریق مـردم زحمتکش و شرافتمند افغا نستان را علیه دولت دموکراـ تیك و مر دمی خو یش تحریك نمایند ولـی این تو طئه های ارتجا عی وخاینانه دشمنان زحمتکشا ن افغا نستان نقش بر آب است .

در جمهوری دمو کراتیك افغا نستان آزادی مـذهـب تضمین گردیده است، اصول اساسی جمهوری دمو کراتیك افغا نستان بر پایـهٔ اصول عدالت برابری واحترام رابرای مسلمانان دین مبین اسلام اعمار جامعه نوین را برای مسلمانان زحمتکش افغا نستان عملا تثبیت نموده است، برای او لین بار در تاریخ کشور کنفرانس علما و رو حا نیون جمهوری دمو کرا تیـك افغا نستان به تاریخ نهم سر طان بر گزار گردید که هشت صد تن نماینـده علمـا و رو حا نیون کشور گرد هم آمدند فیصلـه هیات رئیسه شورای انقلا بی را مبنی بـر تاسیس ریاست عمو می شئون اسلا مـــی تائید نموده در بارهٔ تشکیل شورای عا لـی علما و روحـانیون افغـانستان فیصله اتخاذ نمود نمایند گان کنفرانس مذکور پشتیبا نی خود را از حکو مت جمهوری دمو کراتیـك افغا نستان ابراز نموده از مبارزه بیدریـغ علیه نیرو های امپر یا لیزم ار تجاع و بـه خا طر تحقق اهداف والای انقلاب ثور کـه جوابگوی ار ما نهای مسلمانان زحمتکشــ

افغا نستان است به دولت جمهوری دموکرا- تیك و مر دمی خویش اطمینان داد .

در این موقع پر مسوو لیت مر حلهٔ نوین تکا مل انقلاب ثور مطبو عات منحیث عمـده ترین یاور حزب اهمیت برازنـــده دارد در نخستین کنگرهٔ مو سس اتحادیهٔ ژورنالیستان جمهوری دمو کراتیك افغا نستان تعداد کثیری از کار مندان مطبو عات کشور اشتراك نمودند واز خدمات صاد قانه خویش در راه تحقـــق اهداف حزب و انقلاب و مردم اطمینان دادند کنگـــره اساسنامـهٔ اتحادیهٔ ژورنالیستان را تصو یب وارگان اداری اتحادیه ژور نالیستان جمهوری دمو کراتیك افغا نستان را انتخا ب کرد همچنان به تاریخ چارده سر طان مجلس به اشتراك رهبران و مسوو لین امور دستگاه اداره دولتدایر گردید وتا مین اصل‌مرکزیت دمو کراتیك را در تطبیق پلانهای دولتی یکی از وظایف عمدهٔ دستگاه هـــای اداری دولت مشخص ساخت . تعمیل این اصل امکان می دهد تا در دستگاه اداری دولت از دست آورد های علم استفاده به عمل آید و کنترول از تطبیق فیصله ها خو بتر صورت بگیرد جهت تحقق ارما نهای انقلاب ثور لازم است تـــا دستگاه اداری دولت براساس اصول انقلابی و دمو کراتیك تجدید سا ختمان شود .

قبل از همه باید فعا لیت دستگاه مر کزی دولتی شورای وزیران جمهوری دموکرا تیك افغا نستان جوابگوی وظایف تاریخی ملـــی نوین باشد به منظور تکمیل تشکیل دستگاه هیات رئیسه شورای انقلا بی دستوری صادر نموده که بر اساس آن ریاست عمو می‌اداری ار گان های محلی دولت و ریاست عمو مـــی نظارت در پهلوی دستگاه های اداری تاسیس گردید و ریاست اصلا حات اداری بریاست عمو می کار ومسایل اجتماعی تبدیل شـــد ریاست عمو می تفتیش محا سبات حایزصلا- حیت های نظا رتی گردید ، شکی نیست که قوانین، فرامین ، مصوبات و سایر مقرراتیکه د رمدت مورد گزارش تصویـب شده اندجهت تنظیم امور در تمام سا حات حیات‌افغا نستان انقلا بی و قهرمان تحکیم نظام مر دمی ،دفاع از دست آورد های انقلاب ثور بسیج نمود تمام مردم کشور در یك جبههٔ وسیع ملی پدر وطن و تعمیل تحولات انقلا بی تحت رهبری

حزب پر افتخار ما، حزب قهرمانان و شهیدان حزب دمو کراتیك خلق افغا نستان ، حـزب طبقهٔ کار گر دورانساز و همهٔ زحمتکشـــان افغا نستان برای اعمار جا معهٔ ملی و عادلانه در وطن با ستا نی ما مساعدت خواهد کرد .

متشکرم

# ستاسی پښمن ملګری دا ده دی ټینګ ایمان لری چی
# زموږ د غوقهرمانانو او ځوانو هیواد۔
# پالونکو لیکی ورځ په ورځ زیاتیږي

دافغانستان دخلك ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت د انقلابی شورا د رئیس او صدراعظم ببرك کارمل دهغی وینا متن چی دانقلابی شورا په مقر سلامخانه کی د افغانستان د ځوانانو ددموکراتیك سازمان په عمومی جرگه کی وکړه :
۱۳۵۹ر۷ر۳

محترمو میلمنو ، گرانو دوستانو او ملگرو!

تر ټولو دمخه دمترقی او زیاراېستونکی بشریت دځوانانو دملیونونو مخکښانو لپاره چی دسولی، آزادی، خپلواکی، ټولنیزی ترقی او په وروستی ځیړنه کی دبشریت د همیشنی نیکمرغی لپاره یی خپل گران ځانونه قربان کړیدی ، ددغو مخکښانو قهرمانانو ، دغو عظیم الشانو شهیدانو په احترام په درناوی سره ودریږی او خوشیبی چپ شی .

گرانو میلمنو ، محترمو دوستانو، ملگرو!

دغو ځوانانو ته دمننی لپاره یوه شیبه چپ پاتی کیدل بس نه دی دغو مخکښانو دغو سر- ښندونکو ځوانانو ته همیشنی مننه چی دطبقاتی مبارزی په لارکی او د بشریت د نیك مرغی ددښمنانو دله منځه وړلو په لارکی خپل ځانونه په بی امانه، زړورتیامیړانه او قهرمانانه توگه قربان کړی، موږ یوازی نه چپ کیږو بلکی په دغه شان ځوانو مخکښانو باندی چی د بشریت دنیك مرغی په لارکی یی خپل ځانونه قربان کړی تل ویاړو .

گرانو میلمنو !

محترمو دوستانو او ملگرو !

څرگنده ده چی نن دپخوانی نسل استازی او یا پخوانی انقلابی مبارزین او زموږ دگران هیواد افغانستان دنیکمرغی او سمسورتیا ټول مبارزین ځانونه له عواطفو او له لوړو هیجا -





دافغانستان دخلك ددموكراتيك گونددمركزي كميټې عمومي منشي دافغانستان ددموكراتيك جمهوريت د انقلابي شورا رئيس او صدراعظم ببرك كارمل دافغانستان دځوانانو ددموكراتيك سازمان په عمومي جرگه كې چې دسلامخانې په ماڼۍ كې جوړه شوې وه خپله ارزښتناكه وينا اوروي.

نونو څخه په ډکه فضاکی احساسوی موږ په داسی حال کی چی ستاسو ځوانانو میړنــــی ځیری ته چی دنوی ژوند اونیکمرغی لپــاره دمبارزی په توده مینی سره شویده، گورواو دجرگی دصادقانه اوصمیمانه شوراو زوږ په ژوروالی کی غوږی وهوکولی شو په کلکایمان اوپه پوره داډ څرگنده کړو چی زموږ دهیواد ځوان نسل په خپل ویاړلی مخکښس شتهوالی یعنی دافغانستان دځوانانو په دموکراتیــــک سازمان کی دوظیفی پیژندنی او دثورانقلاب دلوړ وارمانونو درک کولو پهلوړاحساس سره له خپلی سیاسی رهبری دافغانستان دخلك‌له دموکراتیك‌گوندکارگری طبقی او دافغانستان دټولوزیاراپستونکوله‌گوندسره یوځای اوږه په اوږه په میړانه او زړورتوب او قهرمانی سره دگوند او انقلاب بریالی بیرغ لوړ ساتی ●

پریږدی دتل په شان ستاسی په زړنوکی دهیواد پالنی دپاك مشعل رڼا وځلیــــږی او ستاسی په هرو گړی کی په فردی مسوولیت او انقلابی وجدان سره دپتمن احساس د نیکمرغمراتلونکی اوزموږدزیاراپستونکو خلکو اودنړی دنورو هیوادونو دخلکو دښی اونیکمرغه راتلونکی په غرض چی‌دخپلواکی او آزادی، سولی او ټولنیز پــــر مختك په لاره کـــی مبارزه کوی همیشنی شی ●

درنو ویلمنو او گرانو دوستانو !

اجازه راکړی دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند دقهرمانانو اوشهیدانو ددغه‌گوند دمرکزی کمیټی او دهغه دټولو غړو په نمایندگی په توده او دزړه له‌کومی مینه تاسی ټولو او ستاسی له لاری ستاسی دهیوادونو ټولـــو ځوانانو او قهرمان افغانستان ځوانانو تــــه تاوده اوله مبارزی ډك درودونه ولیږم اوځغوی ته دروغتیا او سلامتی، نیکمرغی او هوسایی هیله وکړم ●

درندو ملگرو !

نژدی دوه نیم کاله مخکی زموږ ازادو او پتمنو خلکو په خپل لرغونی اوویاړلی تاریخ کی نوی پاڼه واړوله موږ د پرمختگ په لاره کی دملی او ټولنیزی خپلواکی په لاره کی د ټولنیز عدالت دربښتیانی ټولنی دجوړولو په لاره کی دافغانستان په لرغونی خاوره هغــه ځای کی چی نور به دتل لپاره ظلم او ملی ستم اواستثمار او بیکاری لوږه ، بی وزلی، توپیراو بیسوادی یکی له منځه لاره شی او باید محوه شی گام اخستی دی او تراوسه لادبشریت ددغو لوړ ډسترو هیلود سرتـــه رسید وپه لومړنیو گامونوکی یو، همدااوس په زرونو هیوادپال ځوانان دهغو پروگرامونو دعملی کولو په لاره کی چی دافغانستان‌ددمو-کراتیك جمهوریت په اساسی اصولو کی اټکل اوطرح شویدی په زړورتیا سره کړون کوی هغوی په ولولو اومینه او له هیواد اوانقلاب سره په زیاته او ناپایه مینه په انقلابی قوت سره کار او مبارزه کوی او په سربښندنی سره هیواد او خلکو ته دخدمت په لاره کی خپلی تاریخی اوله مسوولیت نه ډکی وظیفی سرته رسوی. هغوی په زړورتیا او قهرمانی سره پرمخ ځی او ددیری لوړی زړورتیا او قهرمانیو څرگندوی دی او په راتلونکی کی هم دی ●

ستاسی پتمن ملگری ډاډه دی، ټینګ ایمان لری چی زموږ ددغو قهرمانانو او ځوانو هیواد پالونکو لیکی ورځ په ورځ زیاتیږی .

زموږ ګوند په خپلو مخکښو ځوانانو کی دانقلاب جنګیالی قوت اودخپلو لیکو دبشپړتیا ناپایه او ډاډه زیرمی په رڼاکی اوپاڼ سره وینی، موږ په داسی حال کی چی په انقلابی بهیرکی دځوانانو رول ډیرلوړ ګڼوباید ددوی ځانګړی خصوصیتونه دپاکلی ګته ګوری په ډول دځوانی دمنګ له پلوه دزروپه وړاندی مطلق نه کړو .

ځوانان دکارګری طبقی اوټولوزیارایستونکو دګوند له سیاست نه پرته دکوم بل شــی په اصطلاح، دځوانانودخاص سیاست، پیروی نه شی کولی، او له هغو مسالو پرته چی زموږ خلك یی دنوی ژوند دجوړښت په جریان کی حــل کــوی نــوری مسالــی ولــری . بخښنــه غــو ا ړ م کــلـه لیکـل شــوی وینا وی داسی مانا ورکوی چی ځینی ترخه حقایق خپلو هیواد والوځوانانو اوان دمترقی او انقلابی ځوانانو مخکښانو ته ووایم .

موږدنړی دهیوادونودځوانانو دمخکښنواستازو لهمیلمنوسره یوه دوستانه غونډه درلوده. دلته موتر یوی اندازی یوله بل سره خبری اتری وکړی خوغواړم دخو ټکو په تائید اوپه کلکه څرګنده کړم او هغه داده چی بین المللی توری ارتجاع، بین المللی امپریالیزم په سر کی دامریکاوینی ځښنونکی امپریالیزم دنړی له ډیرو فتنــــه اچوونکو مرتدورژیمونویعنی دچین له پراختیا غوښتونکو شئونیستانو سره په لاس یوکولو کی یوه کرغیږ نه جبهه جوړه کړی چی ټول هغه رذیلانه وسایل چی دفاشیزم ،امپریالیزم دزاړه اونوی استعمار، صهیونیزم رسیزم اواپار- رتاید انحصارات یی په واك کی لری دنړی د ځوانانو دمنحرف کولو لپاره په کاراچوی، دنړی دځوانانو په تیره بیا دنړی دځوانانو دمخکښښ لوموی مبارزه کوونکی مصمم اوجدی وظیفه ده چی دپتمنو اومترقی او انقــلابی ځوانانو ددغو راتلونکو میړنیو، دبشریت ددغه راتلونکی نسل ددښمنانو ددغه رذیلانه جریان پرخلاف پیوستون سره په یوه پراخه جبهه کی یــو لاس او یوموټی شی او ددغو ټولو توطیواو دسیسو پر خلاف یوی ستری اوبی امانــــه مبارزی ته سازمان ورکړی .

له همدی امله دی چی ځوانان دکارګــری طبقی دګوند له سیاست پرته یعنی دخپــل هیواد دپرولتاریا او دټولی نړی دپرولتاریا د سیاست له تعقیب پرته په اصطلاح دکوم بل (دځوانانو دځانګړی سیاست) پــیــروی نشی کولی او باید پیروی یی ونکړی او له هغو مسالو پرته چی زموږ خلك یی دنوی ژوندانه دجوړولو په جریان کی حل کوی نوری مسالی ولری .

پدی ځای په خپل وخت ده دهغو خلکو د حکمت یادونه وکړم، چی وایی: هغه وګړی خلك اوولس غښتلی دی چی زړور، میړنی او سالم ځوانان ولری. دافغانستان دځوانان دیموکراتیك سازمان دافغانستان دخلك دیمو - کراتیك ګوند دنړی دی مرستند وی په توګه هلی ځلی کوی چی له خپل ګوند سره فعاله مرسته وکړی .

په ځوانانو کې رښتینې علمي نړۍ لیـد خپور کړی او دهغوی ټولنیز فعالیت لوړکړی. زموږ دګوند مرکزي کمیټه ددغه جوړوونکي زیاراو کار په خاطر مننه کوي او دافغانستان دځوانانو ددیمو کراتیک سازمان دنویو بریا ـ لیتوبونو هیله لري .

په پوره خوښۍ سره ویل کیدی شي چې زموږ دځوانانو سازمان‌دهغه دلیکو په‌لاپینګیدو سره دکارګرواو بزګرو ځوانانو په منلوسره لاپسې ګټور شویدی. دافغانستان دځوانانو ددموکراتیك سازمان دکمیټودغه فعالیت دهیواد دځوانانو دنوي طراز سازمان په توګه بایدپه هراړخیز ه‌توګه پیاوړی شي. ځکه پراتیك څرګندوي چې همدا مخکښ ځوانان اوکارګردي چې‌دثور انقلاب لوړ ارمانونه پرله پسې اوپه دایمي توګه دځوانانو پراخو پرګنو تەرسوي.

دافغانستان دځوانانو ددیموکراتیك سازمان کمیټې پداسې‌حال کې چې تل دافغانستان د خلکو دزیار کښو قشرونو داستازیو دجلب په فکر کې دی په یووخت کې باید خپل فعالیت دلیسو او پوهنځیو دزده کوونکو اومحصلانوپه چاپیریال کې پراخه اوژور ګاندي، ځکه په کوم ځای‌کې چې زموږ فعالیت او هلـې ځلې کمزوري وي او یاکمزوري شي، زموږ ایدیا ـ لوژیك دښمنان په فعاله توګه لاس پەکار پوري کوي اوهلې ځلې‌کوي‌چې په ارتجاعي خلك تیرایستونکو تبلیغاتو، په تیره بیـا امپریالیستي او ماویستي توره ارتجاع زموږ ځوانان ترناوړي اغیزې لاندې راولي.

ملګرو !

ستاسې وظیفه ده چې ان یو ځوان فردهم له نظر څخه لیرې ونه ساتي او دټولوځوانانو دعملونو اوزړونو جلبولو په خاطر شپه اوورځ په زیاته مینه مبارزه وکړی او هڅه وکړی‌چې هغوی دزوراو ګوانښ په چلند نه چې‌پخوانی چلند وبلکې پخپله خوښه او په اګاهانه توګه په وطنپالونکي زیاتي مینې سره دملي اودیمو ـ کراتیکو لویوبدلونونو په بهیر کې له موږسره یواو همرزم شي دغه کار باید دافغانستان د ځوانانو ددیموکراتیك سازمان دکمیټو پەزوښت زړورتیا او په پراخ مقیـاس له ستونزو او مشکلاتو څخه له ویرې پرته پر مخ بوځي .

ګرانودوستا، په کار او مبارزه کې ځوانو همر زمانو !

زموږپه وړاندې ډیرې ستري اوډیري لویې او درندې وظیفې شته. هغه کسان چې پـه پټو شرایطو کې یې فعالیت کړیدی او اوس په ښکاره شرایطو کې ان دخپل ځان په بیه دثور انقلاب دهدفونو دفاع کوي او هـم هغه کسان چې یوازې پرون یانن دې نتیجې ته رسیدلی او زموږ په څنګ کې دریدلی دی‌ښه پوهیږي او یاباید هم وپوهیږي چې زموږ دفعالیت ساحه پراخه او پای نلري اوحداوپوله نه‌پیژني ،موږ تاسوته بلنه در کوو چې دګوند اودولت دسیاست‌دربنتنی‌ازادۍاودزیارایستونکو پرګنو دسوکالۍ او دوروسته والي دله منځه وړلو په خاطر او فیوډالي اودهغې دماقبل د بقا یا وو د پوره ه لیرې کولو دملي اقتصاد دلوړتیا ،دځمکو اصلاحاتو دسم او اصولـــي دوام اودخلکو دژوند دسطحې دترقي، دافغا ـ نستان دملي فرهنګو دپرمختیا اودهیواد ټولنیز

اوسیاسی ژوند دیموکراتیزه کولو په خاطر په زیاته میرانه په پوره ټینګ تصمیم،زیاته زړورتیا او په لاغوخه توګه ملاتړ وکړی .

زموږ دبرحق کار په بری باندې ایمان او خوشبینی ،زموږ دټولنی خوانان ورځ په ورځ نور هم واړه کوی، دهیواد وګړو له نیمایی څخه زیات یی له (۱۹ او ۲۰) کالو څخه لږعمر لری. زموږ په ګران افغانستان کی د انقلابی بهیر اوسنی اوراتلونکی حال د هغه چټک پر مختګ اولوړ تیا زموږ دځوانانو په انقلابی کار اومبارزی پوری تړ لی‌ده، ګوند هراړ خیزه هلی ځلی کوی چی زموږ هرهلك اوهره نجلی باسواده تازه اوروغ اوسی ، ځپل ارزښتناکه استعدادونه اوځپل پیاوړی او قوی قدرتونه په هراړخیزه توګه او ډول ، ډول ځرګند کړی. دافغانستان دنوی ټولنی په جوړولوکی ځپل لوړ مقام ترلاسه کړی‌او په ښه توګه بختور او نیکمرغه ژوند وکړی، زموږ ګوند په دغه کار دافغانستان دځوانانود دیموکراتیك سازمان په اتکا چی دهیواد په ټولنیز واو سیاسی چارو کی به دهغه رول‌په ځرګنده توګه زیات شی ،سر ته ورسوی .

زموږ ګوند دوده کوونکی نسل لپاره دراتلونکی په وړاندې یو تاریخی مسوولیت منلی دی اودغه راتلونکی به بی شکه ډیره ښکلی لوړه بریالی او ځلانده وی، ننني واقعیتونه لدی سره سره چی موږ دکورنی او بهرنی انقلاب ضد وحشی عناصرو پر خلاف ګلکی مبارزی‌ته مجبور یوو، په دی برخه کی شاهد دی، موږ دنوی ټولنی په‌لارکی ځپل لومړی‌ګامونه او ـ چټو، خو واړه ګامونه له سختو ستونزو او مشکلاتو سره سره چی زموږ خلکو ته په ډیره ناوړه غم لړلی سختی اوان طاقت نه لرونکی توګه په میراث پاتی دی او ډیری ستری‌تشی چی لرویی او هغه اړتیاوی چی په هر ځای کی موږ دسیوری په توګه تعقیبوی موږ ګلك تصمیم لرواو پدی سختو شرایطو کی ټول دځپلو ځوانانو د امکاناتو او معقولو غوښتنود ترسره کولو په لټه‌کی یوواو دکار ،تحصیل، استراحت، نیکمرغی اوځوانانو دخلاقواستعداد ونو دغوړ یدولپاره دمساعد وشرایطو دپیدا کولو لپاره له هر امکان څخه استفاده کوو او باید استفاده وکړو .

ګرانو ملګرو !

غواړم اعلام کړم چی انقلابی شورا اوحکومت تصمیم نیولی‌چی‌په کابل کی دماشومانواوتنکیو ځوانانو مرکزی ماڼی جوړه کړی چی کار به یی ددولتی بشپړو تامینا توله لاری ترسره شی، سږ کال په اوړی کی دکابل دپولیتخنیك په انستیتوت په‌هغه انستیتوت‌کی چی موږدستر دوست شوروی اتحاد په مرسته جوړ شویدی دافغانستان په تاریخ کی دمځکښانو لومړی کمپ فعالیت وکړچی په هغه‌کی دهیواد دټول تاریخ په جریان کی دلومړی ځل لپاره دکار ـ ګرانو او بزګرانو ماشومانو په وړیا توګه او دکار ګرانو او دبزګرانو ماشومانو پـه احترام سره یکی استراحت وکړ .

کولی شو په پوره ډاډ سره ځرګند کړو چی زموږ په هیواد کی به زموږ ماشومان ډیره ممتازه په اصطلاح طبقه شی ګونداو دولت به دهیواد دماشومانو دنیکمرغی دپاره له هیڅ وسیلی څخه ډډه ونکړی .

ددغه تکی لپاره به موږ ټول په فداکارانه توګه هلې ځلې وکړو، مبارزه به وکړو او په ګلکه اوغوښه توګه به بریالی شو.

په بشپړرضایت سره غواړم وو وایم چی ستاسو ـ جرګه بهزموږ په هیواد کی دملی او دیموکراتیك انقلاب پـــه پړاوکــــی د مخکښی دغورځنګ پرمختیاته کلکه پاملرنه وکړی. له ماشومانو سره کار سخت او پیچلی کار دی او کلك مهارت او ژوره پاملرنه غواړی له ما شو مانو سره باید دمهربان زړه ، شریف حوصلـــه لرونکی او پاك روح کسان کارو کړی .

موږ باور لرو چی ، دافغانستان دخوانانو دیموکراتیك سازمان به له خپلو لیکو څـخه په زرګونو تنه دغه شان کارکوونکی راوباسی چی په ستر ګوندی مسوولیت او له ماشومانو سره په زیاتی مینی سره زموږ دهیواد ما ـ شومان دثور انقلاب دلوړو ارمانونو پهروحیی سره وروزی او زموږ دوطن هلکان او نجونی دزیاراییستونکو شریفو متواضع عناصرو با ـ سواد واودګران افغانستان دبافرهنګو اتباعوپه شان وروزی زموږ دموږنی وطن له ماشومانو او هلکانو سره دکار دتنظیم برخه باید له پامه لری ونه ساتو چی هغوی باید په اسلامـــــی ارزښتونو سره زموږ دمسلمانو زیار ګښوخلکو یعنی زموږ پلرونو ته باید په درنده سترګه وګوری او باید موږ خپل ماشومان په درنده سترګه بی باکه دخپلوپلرونو، نیکونواوغورنیکونو دین،دودونو اوعنعنوته په درناوی اورعایت نه کولو دګورنیو له درناوی او هغو مقدساتو ته له در ناوی پرته چی زموږدپلرونو او نیکونو میراث دی ونه روزو .

څه موده مخکی زموږ مر کزی ورځپاڼو د جوماتونو له ودانو لوسره دمرستی په باره کی دمخکښانو دیوشمیر سازمانونو دنوښت خبر خپورکړ، دایوعالی شریفانه ښه او معقـــول نوښت دی، موږکولی خوپه ویاړ سره ووایو چی دافغانستان دمخکښانو سازمان پوره زموږ په ملی غوره اولرغونوخودونوولاړدی اودغوړ ـ یدلی ګل په شان اوپه بی ساری توګه زموږ دازاد واوپتمنو زیارکښو خلکو په مینځ کی وده کوی دافغانستان دمخکښانو سازمان د خپلـدوګټورواونه دریدونکو سمندرونوپه شان دراتلونکی په لورپه غرمبهاسره بریالی پرمخ ځی. ددغه مبارز سازمان لپاره بیا هم پدغه لاره کی دبری او غوړیدو هیله کووګوند د افغانستان دځوانانو دیمو کراتیك سازمان ته هدایت ورکړیدی چی دمخکښانو سازمان ته لاربښودنه وکړی اوباور لری چی تاسی پدغه کارکی حتما بریالی کیږی .

دادی یوی بلی مسالی ته چی دماشومانوپه کار پوری اړه لری او هغه هیڅکله نشوهیرولی ګوته نیسو، فیوډالیزم همدا ستمګر او تور نظام دی چی زموږ دهیواد لپاره یی زیاتـی بدمرغی او له دغی جملی څخه بی سر پرستان اویتیمان پرینښی دی ، موږ نشوکولای دغه چه په زرونو اولس ګڼو زره ماشومان او کمکیان سر ګردان او اواره دی، هر چاتهد ګدایی اوسوال لاس نیسی رنځوردی لهنیستی اوبدمرغی سره مخا مخ دی خو تراوسه پوری پهډیر ی خواشینی سره دګوند دځوانانودديموـ کراتیك سازمان دټولنیزو سازمانونو اوبیخی دحکومت او دولت ددستګاه دادارې په تیره

بیا دتعلیمی ،تربیتی‌اوطبی دایروله سترګوپناه پاتی شوی وزغمو، دادزغم‌خبره‌نده، هغه هیواد چی خپل خان ته دانقلاب خاوره او قهرما ن افغا نستان‌وای‌نشی کولای ددی‌خبری زغـــم وکړی ،چه دهغه ماشومان او کمکیان په دغه بدمرغی اوخواری کی ژوندوکړی، مسا له په دی‌کی ده چه‌باید عملازموږ ټول ماشومان او کمکیان ددولت مورنی پالنه احساس کړی .

ز مو ږ ځوانو ملګرو ، پدی ځای کـــی زمـــوږ د ټـولی ستر ګی ستاسی په‌لورا ــ وړی، هغو کسانو ته چی زیات مسوولیـــت ورسپارل کیږی له هغوی څخه زیاته هیله‌او غوښتنه کیږی، دادافغانستان دځوانانوددیمو- کراتیك سازمان وظیفه ده چی یوه شیبه‌دهیواد بی سر پرسته او سر ګردانه ماشومان له نظر څخه لری ونه ساتی، دادافغانستان دځوانانو ددیموکراتیك‌سازمان‌ډیره پتمنه اودرنده وظیفه ده،کله چی ګوندپه ځوانانو او دهغوی پـــه انقلابی مخکښی دافغانستان دځوانانو په‌دیمو- کراتیك سازمان باور کوی په راتلونکی کی‌به هم ستری غوښتنی ستری قربانی ستری او زیاتی فداکاری وغواړی ،دافغانستان دځوانانو دیموکراتیك سازمان پداسی حال کی چی د کارګرانو، بزګرانو، کسبګرو ومحـصـلا نو، ښوونکو پو ځیانو. اودروښ فکرانوداستا زیو پراخی پر ګنی یو مو ټی کوی باید او باید ځوان نسل دانقلابي علمی تیوری ، داصو لو دافغا نستان د خلکو دوپاړلو دودو نو او د ثور انقلاب ارمانونو تـه د وفاداری په روحیه وروزی .

طبیعی ده چی د افغانستان د ځوانـانـو د دیمو کرا تیك سازمان هر غړی د ټو لنیزی پشمیړتیا قوانین او د انقلابی مبارزو تاریــخ په غور سره مطا لعه کړی او د پیچلو او ږول ږول پدیدو او د معا صر فعا لیت په حل کی لازم وس پیدا کړی ، دافغا نستان د خلك دیمو کرا تیك ګوند د سیاست دتر سره کو لو په کار کی آګا هانه مبارزه او دغه راز دافغا نستان د ځوانا نو د دیموکرا- تیك سازمان د هر غړی مبارز کیدل داما نا لری چی باید دانقلابی تیوری ټولی شتمنی‌زده کړی او وکولای شی هغه په ورځنی عملی‌کار کی د خپل عمل او ژوند شخصی وی که‌ټولنیز او که سازما نی ملاك وګر ځوی ، د تیوری دغه ستری شتمنی لایزا له او ستری دی دغه انقلابی تیوری چی نن دهغی بیرغ په ټـوله نړکی ار تجاع لرزوی د هغی هد ف زموږ په سیاره د ځمکی په کره کی د نوی ټو لنی او نوی پتمن او په خلاق وس او قدرت سر ه دانسان جوړول دی .

همدا وجه ده چی ټینګار کیږی چی باید د انقلابی مترقی تئوری ټولی شتمنی زده کـړو او وکولای شو هغه په ورځنی عملی کار او ژوند کی د عمل ملاك وګر ځوو .

دافغا نستان د ځوانا نو د دیمو کرا تیك سازمان دکمیټو بی ځنډه و ظیفـــه د هغـی د ټولو غړیو وروسته بیا د ټولو ځوانا نو د سیاسی زده کړی د بسط او منظم سیستـم را مینځ ته کیدل د دی کار مانا داده چـــی باید زموږ دانقلا بی هیواد د هلکـــا نو او نجو نو دو دی په ټولو پړاوو نو کی پـــه ښوو نځی کی وی که په فابریکه کی ذکر نی په کواپراتیفونو ، د کار ګرانو په ګـو څه

ښارو نو کی وی که په کلی کی وی که په اردو ، ځارندوی او نورو کی دانقلابی علمی تیوری منظماو ژوری زده کړی ته سازمان ور کړ شی .

په دغه بر خه کی باید دشوروی اتحاد ، سترو ژورو تجر بو د سو سیا لیستی ټو لنی د نورو ورو ڼو هیوادو او د نورو انقلا بی او متر قی گوندو نو او کار گری گوندو او دهغو دولتو تجر بو ته جدی پا ملر نه وشی چی د ترقی د بشپړ تیا په لاره روان دی .

دا جو ته خبره ده چی په ځوا نا نو کی اید یو لو ژیك کارنه یوازی دافغا نستا ن د خوا نا نو د دیمو کرا تیك سازمان ، سازما نو نه او کمیټی پر مخ بیا یی ، بلکی گوند ، ښوونځی او مدرسی او دلـــوړو او منځنیو تعلیما تو مو سسی هم په فعا لـــه تو گه د دغو هد فونو په تر سره کو ڼو کی بر خه اخلی .

غواړم پد غه ځای کی د ځوانا نو پـــدی رسمی جرگه کی څرگنده کړم چی په ټو لو سطحو کی د ښوو نی د مو سسو د امر ینو د مسـؤ لیت زیاتیدل او دما شومانوکوچنیانو او ځوانا نو د رو زنی له پاره د ښوونکو د تر کیب ښه والی کلك ضرورت او ستـــر اهمیت لرو نکی کار دی .

په خوا شینی سره له پخوانی پو هنی څخه موږ ته یو دروند میراث پاتی دی چی پههغه کی د روزنی سیستم نشته او یوازی زده کړه چی هغه هم له بدمر غه پخپل مترقی بشپړتیا کادرکی ندی .

یعنی زموږ د پرو نی پو هنی په سیستم کی فیودالی او بور ژوازی دوله زده کــړم مو جوده وه خو روزنی ته له سره پا ملر نه نه کید له یعنی د رو زنی له پر مخ بیو لو پر ته ښوو نه دغه ډول طرز باید له جړرو څخه بدل کړ و باید زده کوونکو اومحصلینو ته دافغا نستان د دمو کرا تیك جمهور یـــت اساسی اصول په هیواد کی سیاسی حالت دافغا نستان د خلك دمو کرا تیك گونـــد سیاست ، دافغا نستان د ځوا نا نو د دمو ـ کرا تیك سازمان او د نورو ټو لنیزو ساز ـ ما نونو فعا لیت څرگند کړو . د یو ریښتینی وطن پا لو نکی وظیفه ده چی خپل هیواد دزړه له کومی او دوجدان له مخی ورباندی گران وی داده چی نه یوازی په زوره تو گه د خپلی پو هی سطح لوړه کړی بلکی په عمل کـــی د نوی ټو لنی د جوړ ولو په کار کی تجر به او مهارت زیات کړی او یوازی د طو طی په څیر د کتاب په زده کو لو اکتفا ونکړی . موږ باید د قهرمان او انقلا بی افغا نستان دنوی ټو لنی فعال او پوه جوړوو نکی وروزو .

د نړی د زیار ایستو نکو مشر ، دځوانا نو د اتحاد یو وظیفی ، تر عنوان لاندی و ینا کړی چی تر نن ورځی پوری یی خپل اهمیت نه یوازی له لاسه ندیور کړی بلکی دځوانانو دژوند د مدرك د لار ښوونی او شا خص په توگه یی خپل اهمیت ساتلی دی .

دهغه وینا زموږ له پاره پـــه افغـــانستان کی د ملی او دمو کرا تیك انقلا ب داوسنی پړاو له پاره زموږ د ځوانا نو د پــــاره د افغا نستان د ځوانا نو د دمو کرا تیك سازمان له پاره حیا تی او ستر اهمیت لری .

ویر ښه دی چی دافغا نستان د ځوانا نو د دمو کرا تیك سازمان د عمو می جر گـــی د جوړیدو او دنړی د دمو کرا تیکو ځوانانو د بین المللی سازمان د پیو ستون د میټینګ په درشل کی دغه وینا یعنی د ځوانا نو د اتحاد یی دوظیفو رساله په‌ګڼ تیراژ چـــاپ شویده .

دافغا نستان دځوانانو ددیمو کـــرا تیك سازمان کمیټی باید لدغی رسالی یعنـــی د ځوا نانو د اتحاد یو وظیفی څخه د ځوا نا نو د سازمان دغړ یو د هراړ خیزه درك او زده کړی په لاره کی لازم کار سر ته ورسوی .

دنړی د کار ګرانو مشر د شوروی ځوان دولت دتاریخ په سخته دوره کی هغه و خت کی چی وینو څښونو نکو امپر یا لیستا نوڅخه کو له هغه په نطفه کی لکه چی زموږ دهیواد د خلکو دانقلاب په وړاندی دغه عمل اجرا کوی شنډ کړی ځوا نا نو ته پخپله وینا کی په شور او زوږ او له ولولو څخه ډك شعار سره وویل ! ځوا نا نو زده کړی او دزده‌کولو په ترڅ کی نوی ژوند منځ ته راوړی .

دبیسوادی دله مینځه وړلو په لار کـــی مبارزه دافغا نستان د ځوا نا نو د دموکراتیك سازمان په فعا لیتو نو کی یـــوه څـــر ګنده مسئاله ده که څپله حافظه د هغه ټول علمی او فر هنګی میراث په زده کړی سره چی مترقی بشر یت منځ ته راوړی ښایه نه کړو نه شو کولی نوی انسانی ټولنه جوړه کـــړو تاسو باید د ملی او نړ یوال فر هنګ شتمنی تر لاسه کړی او په خلاقه تو ګه یی درك کړی او د هغی پر ښنسټ او د مترقی انقلا بـــی تیوری په مرسته عملی فعالیت وکړی او د افغا نستان د نوی او انسا نی او متر قـــی مخکښ ټو لنی دودی او تکامل په‌لار کی په قهرمانا نه تو ګه مبارزه وکړی .

ملګری پو هیږی چی اوس د نړی د خلکو د خپلواکی غو ښتو نکو پیاوړو انقلا بونو له اصو لو سره سم موږ له علمی او فنی انقلاب سره یو ځای پر مخ ځو او نن د علمی اوفنی انقلاب ستر قدرت د بشر یت سر نو شت ټاکی . مهم ټکی څه شی دی . په ډیـــره خواشینی سره د دغه ستر قدرت یوه بر خه چی د بشر یت د نا بغه وو د مغز و محصول دی دامپر یا لیزم د طا غو تی او شیطا نـــی قو تونو او امپر یا لیستی انحصا را تو لاس ته ور غلی ده د دی پر ځای چی علمی او فنی انقلاب د بشر یت په خدمت کی شی بالعکس په هغو زر ګونو ملیاردو نو سره چی کو لی شی بشر یت نیکمر غه کړی د علمی او فنی انقلاب څخه د بشر یت دله مینځه وړلو په لارکی په رذیلانه تو ګه استفاده کوی خوموږ بله نړی هم لرو چی په سر کی یی شوروی اتحاد دی او پخپلو پولادی سو کونو سره چی هغوی پر خپل ځای کی د میخ په تو ګه ټینګوی او هغوی ته اجازه نه ور کوی چی له بشری شر یفی پو هی یعنی علمی او فنی انقلاب څخه د بشر پر ضد استفاده وکړی .

نن دی د یوی شیبی له پاره دزاړه اوځوان په ګډون شریف انسانان فکر وکړی کـــه چیری د سولـــی خپلواکـــی او دموکراسی او د بشر یت د تر قی او نیکمر غی لپاره

دسیاسي او ټکنا لوژۍ ستر قدرت دشوروی
اتحاد په لاس کی نه وای او یوازی دنړیوال
امپریالیزم ، بین المللی لوټمارو انحصاراتو
په سر کی یی دامریکا امپریالیزم او چین
وحشیانه شئو نیزم په انحصار کی وای نونن
به د بشر یت سر نو شت خه ډول وای نتیجه
به یی خو نړی او د بشر یت له مینځـــه
وړو نکی جگړه وای دا شوروی اتحاد دی چی
دټولو وحشیا نو مخه یی نیولی ده او هغوی
جرائت نه کوی لکه چی غو ښتل یی زموږ
د هیواد په سر نو شت کی خائنانه اورذیلانه
رول ولو بوی او زموږ هیواد په وینو اواوړ
کی وا چوی او زموږ خپلواکی او آزادی له
مینځه یوسی دغه قدرت د شوروی اتحـــاد
محدود قطعات وو چی زموږ د خلکو په مرسته
یی د دښمنا نو په خوله وسپنیز او غاښــ
ماتوو نکی سوك ورکړ .

دشوروی اتحاد او نورو سو سیا لیستی
هیوادو نو اوټولو هغو دو لتو نو تجر بو چی
د پرمختگ په لاره روان دی وښود له چی
نوی ټو لنه د علم او تخنیك د نتیجو پرښسټ
د صنا یعو او کر نی له پر مختیا پر تـــه
نه شی جوړیدلی او د دغه مقصد له پاره لازمه
ده چی د عمو می او تخصصی ښوو نو تینگت
ښسټ منځته راوړل شی .یعنی کله چی واېږ
دشوروی اتحاد او نورو سو سیا لیستـــی
هیوادو نو تجر بی یعنی داچی څرنگه دغـه
هیواد و نه علم او تخنیك د نوی ټو لنـــی
د جوړولو له پاره د بشر یت او انسا نیت
دنیکمر غی په لاره کی پکار اچوی تاسوبایه
په خپله له ځنډ څخه پر ته تحصیل وکړ ی

او د هیواد د ملیو نی ځوا نا نو د مخکښی‌په
توگه د هغوی له پاره سر مشق شي او په
پراخه تو گه ځوان قشر تحصیل کار مبارزی
او وطن پالنی ته جلب کړی ضروره ده چی‌د
ماشو مانو شو وني ته کلکه پا ملرنه وشی
زموږ په هیواد کی داسی شرایط را منځتـــه
شویدی چی بیسواده ما شو مان څلور کلنه
تعلیمی دوره په دووکلونو کی پای ته‌ورسوی
وریسی پنځم ټولگی ته شامل شی .

د هیواد ځوانو مخکښو ستاسو کلکه وظیفه
ده چی له ما شو ما نو او په تیره بیـــا د
صنایعو او کر نی له کار کوونکو سره چی
تعلیم یی نه وی لیدلی د تعلیم او پوهی د
تر لاسه کولو په بر خه کی مر سته وکړی .

د گوند دافغا نستان د ځوا نانو د دمو ـ
کرا تیك سامان او نورو ټولنیزو سازما نونو
او دولت د دستگاه وظیفه ده چی په لنـــو
کا لو نو کی افغا نستان په عمومی سوادبدل
کړی دا دافغا نستان د ځوا نا نو د دمو کرا ـ
تیك سازمان د غړ یو مهمه وظیفه ده چی د
ځوانی په ولولو او مینی او هیجان سره په
کار لاس پوری کړی خپل رو مانتیك‌هیجانونه
ولولی اومینه دانسانی روحیی اوافکاروپرتمین
معـــر فـــت او و جـــا هـــت ته متوجه کړی .

د(درفش جوانان) جریده چی یوازی لږ څه
د مخه منځ ته راغله دسیاسی توده یـــــی
تبلیغا تو په کار کی مهم رول لوبوی نـــن
دغه جریده په بی ساری توگه د هیواد دتاریخ
په‌ټول جریان‌کی د (۵۰) زروټسخو په تیر ـ
اژ چاپ شویده دا دافغا نستان د ځوانا نو د
دمو کراتیك سامان د غړ یو زموږ ټولـــنو

ځوانا نو دګوند د غړ یو او د هیواد ټــول
مترقی قوتو نو لپاره یوه ستره پیښه ده .
موږ د شئونیزم او فاشیزم ټولو مظا هرونه
دکرکی په ترڅ کی پخپلو ملی او تاریخی
پرتمینو افتخارو نو ویاړو او هغه د هیواد په
تاریخ کی د دغی خاوری دانسان د کار نامی
ارزښت بولو .

درفش کاوه آهنګر، هغه زړه‌ورمبارزچی دظالم
ضحاك پرضد پورته شواو د خلکو پر ګنی‌یی
رهبری ګړی زموږ د خلکو یو هغه ارزښتناك
ویاړدی چی په‌حقه کولی شی پری وویاړو.

زموږ ځوانانو د هیواد پالنی په احساس‌د
درفش ویاړلی نوم د خپل جریدی لپاره وټاکه
د جریدی نوم ددی خپرونی د فعـا لیتو نو
اساسی اړخونه په ښه توګه څرګند وی.

ددرفش کلمه ژوری لرغونی ریښی اری‌پـه
پخوا وخت کی د کاوه په نوم یو اهنګــر
خلك دسفاك اورتړی ستمګــر یعنی ضحـا ك
پاچاپرخلاف راپاڅول هغه په‌یوی نیزی‌باندی
داهنګری د څرمنی ډال وزړاوه او هغه یی‌دګ ر
دخلکو د بیرغ په نامه پورته کړاو خلك یی‌د
ضحاك پرخلاف رهبری کړل ، له هغـــه وخت
نه‌راهیسی د درفش کلمه د افغانستان‌دخلکو
په فرهنګ کی شامله شویده .

لـــدی امله ده چی زموږ ګـــوندی بیرغ
زمـــوږ د ګـــوند بیـــرغ دی او زمـــوږ
دګوند دغه ویاړلی کلمه دافغانستان د ځوانانو
دډموکراتیك سامان د مرکزی ارګان‌د نوم په
توګه یعنی هغوی ته زموږ د ځوانا نو بیرغ‌په
امانت وسپاره او د افغانستان د ځوانانـــو
دموکراتیك سازمان دی چی د دغی کلمی پــه
وړاندی څرګنه‌باید د ثور انقلاب دارزښتونوپه
دفاع او وروستی بری ته د ملی او دموکراتیك
انقلاب په رسیدلو او د نوی ټولنی په جوړولو
کی چی په هغی کی به هیڅکله داسی انسان
نه‌وی چی بل انسان استثمار کړی بلکی بــی
احترامی ظلم او ستم‌هم‌نه‌کوی‌خپلی تاریخـــی
ستری وظیفی سر ته ورسوی .

نن د کار او کار ګر انسان تر بیرغ لاندی
اود ثور انقلاب تر بیرغ لاندی د افغانستان‌د
ټولنی ټول مترقی قدر تونه سره یو کیږی او
زموږ حق لرود (درفش جوانان ) داوونیزی‌د
لیکنی له هیات څخه د پراخو او روښانـــو
تبلیغاتو تو ضیحی او د انقلاب د تیوری اود
ګوند د سیاست د قناعت کوونکی او همدارنګه
دځوان نسل د ژوند د ژوراو مشخص درك اود
هغو کوچینو نویواومترقی ډزود لتو لو هیله
وکړ وچی زموږ د ټولنی د ننیو حقایقو زیږنده
ده .

دځوانانو جریدی دغه رسالت تر لاسه کړی
چی په خپل شاو خوا ټول مترقی او خـــوان
قوتونه او هغه روشنفکران چی د هنراو ادب
په‌برخه کی د کار مقصد لری سره یو کړی‌او
له‌هغوی سره په صداقت مرسته او ملاتـــړ
وکړی .

دافغانستان د ځوانانودموکراتیك سازمان
دپاره دآګاهانه کار او انضباط په روحیی سره
دځوانانو روز نه زیات اهمیت لری .

زموږ هیواد طبیعی ستری شتمنی لری موږ
باید دغه شتمنی د خلکو په خدمت کی پکار
واچوولازمه ده چی په صنعت او کرنه کـــی
اقتصادی پیاوړی بنستونه کیږدو .

پدی کار کی د مستقیمی او فعالی برخی اخیستل دځوان نسل ستره وظیفه ده، نن‌په هیوادکی ښه کار کوی یعنی څه یعنی داچی:

لومړی باید په کار کی بادسپلین او هڅه کوونکی او سو په دولتی سکتور کی بایدپلان اجرا کړی شی او له پلان نه زیات کار وکړو اوپه خصوصی موسسو کی هڅه وکړو داسی محصلاتو ته وده ورکړو چی هیوادورتــه اړه لری ۰

دویمه باید کار د هڅه د اجرا په ځای‌کی‌سم اوکړه وکړو محصولات باید د هڅه اوړکیفیت تولید کړو ۰

اودهغی دکیفیت دښه کولو لپاره کوښښ وشی‌اوله‌مادی‌ارزښتونوسره محتاطانه‌چلندوشی یعنی هیڅ مادی شی که چیری هڅه په افغانی تسعیر کړو یعنی یو وطن پالونکی ځوان،یو وطن پالونکی افغان‌یوه افغانی بی ځایه‌ونــه لګوی اویا اسراف ونه کړی، دریمه داچه‌دکار په ټولو دستګاووا‌و مرکز ونوکی یوه داسی روحیه پیدا کړو چی هر وخت په‌ګټوره توګه دکار د حاصل‌دورکولویاپه‌بله ژبه دکاردحاصل په لوړو سره خپله وظیفه پرمخ بوزی اوله کارڅخه ګټه اخیستل نور هم زیات شی۰

دافغانستان دځوانانو ددموکراتیک سازمان غړی په ښاریا کلی کی د اقتصاد په برخه کی د ټولو نوښتو نو او پر مختګونو مبتکرینو په‌توګه باید په لومړی لیکه کی ودریږی دخپل خوښی کار دورځو نمانځونکی او دمخکښــو غورځنګونو تنظیم‌ورکوونکی‌وی‌اود کار پرمختللی بڼی‌ولټوی او طرحه یی کړی ۰

ملګرو ، ځوانو مخکښانو او ځوانا نو وینی چی تاریخ څه ستری او درندی وظیفی ستاسو په اوږوایښی دی ۰

د افغانستان دځوانانو د دموکراتیک‌سازمان غړی موظف دی چی د ځوانو بزګرانو او کار-ګرانو د کار اوژوند تنظیمولو ته کلکه او دایمی پاملرنه وکړی او د هغوی د حقوقو تامین لپاره په زړورتیا سره مبارزه وکړی او له‌هغو سره د هغوی د ژوند په منظمولو او یوکولو او ترتیبولو کی کلکه مرسته وکړی البته د اخبره پدی مانانه ده چی ځوانان دګوند دولت او انقلاب مخکښ یاد ګوند دولت‌اوانقلاب لارښود دی ۰

دادځوانانو او روښنفکرانو وظیفه ده په‌تیره بیا زمامقصد روښنفکره ځوانان دی باید د کار ګر طبقی او د کار ګرو ځوانانو اودکارګری طبقی د ګوند یعنی د افغانستان د خلك‌دمو-کراتیک ګوند په لار ښوونه خپلی تاریخــی خلاقی وظیفی سرته ورسوی ۰

دافغانستان د ځوانانوددموکراتیک سازمان غړی باید د اقتصاد لارښوونه په نوی میتود سره زده کړی او هڅه وکړی چی زموږ پنځکلن پلان اجرا او تطبیق شی ۰

درند و ملګرو !

زموږ لپاره ډیره په زړه پوری او الهــام بخښونکی ده چی د افغانستان د ځوانانو د دموکراتیك سازمان دجرګی په میلمنو کی‌دنړی دڅه دپاسه دځلورځلوینښتو هیوادو نــــو استازی د ځوانانو دمهمو بین المللی اتحاد-یویعنی د دموکراتیکو ځوانا نو د بین المللی فدراسیون د محصلینو د بین المللی اتحادیی

اودسیمه ییزو او منطقوی سازمانونو استازی شامل دی •

گرانو میلمنو !

موږ یوځل بیا تاسی ته تو داودزیږه له‌کومی ښه‌راغلی وایو او زموږله انقلابی کار یعنی د آزاد او قهرمان انقلابی افـــغا نستا ن وخلیکوله انقلابی‌کارسره ستاسی دژوری بی‌غرضه مرستی ،ملاتړ او پیوستون له امله‌د زړه له کومی مننه کوو،دافغانستان دموکراتیک جمهوریت بهرنی سیاست پوره‌پیاګه او څرګند دی، یوازی شوپرکان یی‌په رڼو ستر ګو نشی لیدلی •

دغه سیاست په عینی ډول زموږ دانقلاب اودولت د نظام د طبیعت زیږنده‌دی اونه‌یوازی نن‌آن دانقلاب دتاریخ په اوږدوکی زموږ د زیارکښوخلکو دارادی انعکاس دی اوویبه، په لومړی درجه کی زموږ د بهرنی سیاست‌اصلی کرښی څه‌دی ... موږ چمتو یوود نړی لــه ټولو هیوادو سره خپل اړیکی بی له دی‌چی دهغوی سیاسی او ټولنیز نظامونه په‌پام کی ونیسو د برابری ، خپلواکی او ملی حاکمیت اودخمکی تمامیت متقابله ګټواو ښی همکاری‌په اساس د یو بل‌په کورنیو چارو کی‌د لاس‌نه‌وهلو او د خپلی آزادی او خپلو اکی او تکامل دلاری په ټاکلو کی د ملتونو د درناوی په اساس او دخپل شخصی ژوندطرزپه پیروی دتاریخی ملی اومذهبی ارزښتونو اوددودونود درناوی په اساس د نړی له ټولو هیواد و سره‌خپل اړیکی بی توپیره پراخه کړو•

لیدل کیږی چی دغه اصول له بین المللی موازینو سره سم دی • نو بیا ولی رنګارنګ امپریالیستان تر ټولو مخکی د امریکا، نړی خوارامپریالیزم اودهغوی لاس په‌نامه‌انړیوالان دچین پراختیا غوښتونکی‌هژمونیستان، مرتجعین او فاشیستان په اصطلاح ، د افغا نستان‌له مسالی ،څخه په کار اخیستو سره په دغسی په‌بی شرمی او سپکاو ی سره د بی ادبــی ترسرحده پوری له هستریك رنګ سره یوځای وارخطا او اندیښمن دی او زموږ د هیوادپــه چاروکی لاس وهی ، د اولی ؟ څواب ډیرآسان څکه زموږ خلکو ،زموږ ګوند، زموږ دولت،زموږ انقلاب او زموږ ټولو ملی او ترقی غوښتونکو وطنپالوځواکونو دخپلی ترقی‌سولی اونیکمرغی لاره ټاکلی ده •

همدا وجه ده چی ټوله بین المللی ارتجاع اوامپریالیستان په هستریك رنګ اخته دی‌او په سیمه‌کی خپلی ګټی په خطرکی وینی‌څکه دغه لاره چی‌موږ غـــــوره کـــــړی هیڅکله د بین المللی ارتجاع او په نړی‌کــی واکمنو او استثمار ګرو طبقو له غوښتنو او ماهیت سره سمه نده‌اوسمیدی نه شی • دایوه طبقاتی مبارزه ده‌او د ازموږله خوا یوه‌عادلانه مبارزه او د ارتجاع له نظره یو خاینانه مبارزه ده• موږ په خپله دغه مبارزه کی د نړی‌مترقی اوانقلابی ځواکونو په سرکی له ستر شوروی اتحاد سره په پراخی جبهی سره په میړانه اوزړورتیا پرمخ‌ځو •

تاریخ له موږ سره دی ،دتاریخ حکم لــه موږ سره دی، ټولنیز عینی بشپړتیا څوك‌نشی درولی • تاریخ څوځله د ارتجاع او امپریا‌لیزم دشرموونکو عملونو بی بنسټ والی او رسواماتی ثابته کړیده‌له دی سره سره پــه

نړۍکی داسی قوتونه هم شته چی غواړی‌پدغو ورخوکی په‌ناکامه توګه زموږ د خلکو د ارادی پرخلاف د ملګرو ملتوعمومی‌ټولنه، دافغانستان په‌باره کی په اصطلاح د کومی مسئلی څیړلوته مجبور کړی، موږ له سره د خپل هیواد په باره‌کی له کوم بهرنی هیواد سره کومه‌مساله نه‌لرو، د افغانستان په نامه دغه شان اختراع شو ی مساله د افغانستان د خلکو دارادی‌له مخی له سره په رسمیت نه پیژنواو په‌اصطلاح دافغا نستان ،مسالی په نامه یو داسی مزخرف شی له سره نه شته ، داد بین المللی ارتجاع له‌خوا جوړ شوی او بدل شوی شی د ی ۰چی دهغوی څیری پیژنـدل شـوی او هـر ورځ ماسکونه د هغوی له مخو نو څخه پورته کیږی موږ دهغوی د دغو بی شر مولاس وهنو تیریو اوورانکار یو په مقابل‌کی اصولی عادلانه‌اوغابن ماتوونکی خواب لروچی ، د انقلابی قهرمان‌او خپلواك افغانستان آزاد، پتمن اوله غرورنه‌ډك خلك پخپله اویوازی پخپله خپل دوستـــان انتخاب کړی او انتخابوی او انتخاب بـه‌یـــی کړی ۰

په د غه ځـا ی کـــی هیـڅ څـــــو ك دافغانستان مسلمانو او آزادو له‌غرورنه ډکو اوزیار ایستونکو خلکو ته مشوره نه ورکوی‌او هیڅوك د خلکو په خپلی ارادی باندی‌دمشوری حق نلری اوهیڅوك نه شی‌کـولی، دافغا ـ نستان د خلکو نصحیت کوونکی ،اوناصح‌شی هغه څه چی په شوروی اتحاد پوری اړه لری زموږ نژدی او محترم دوست هیواد دی، دغه هیواد زموږ د خلکو د ارادی او زموږ د خپل تصمیم له مخی زموږ نژدی او محترم دوست دی۰ د افغانستان او شوروی دوستی تاریخی کلکی ریښی‌لری او پیل یی داکتوبر سوسیاـ لیستی ستر انقلاب ته رسیږی ۰

دویاړ ځای دی چی ددغی دوستی بنســــټ ستر لینن کینښود او د افغا ن قهرمانواوآزادو خلکو د زړه له کومی او پخپله اراده د هغی تود هر کلی وکړ۰ له شوروی اتحاد سره‌زموږ وروروولی اوبی غرضه دوستی زموږ د هیواد یوه تاریخی لویه پدیده ده د افغانستان دهر اصیل او رښتینی وطن پالونکی فرد لپاره دغه دوستی یو ملی ، همیشنی او دوامدارمویاړاو زموږ په هیواد کی د افغانستان د خلـــکو لپاره دنیکمرغی نوی ټولنی د بریالی جوړولو ضامن دی ۰

محتر مو ملګرو ! زه غواړم بیا هم پـــه ټول مسوولیت سره ووایم که چیری د هغـــو پوځی مرستو په ګډون چی په پوره قانونی اساس سره شوی د شورو ی اتحاد مرستی نه‌وای اوس به زموږ ګران افغانستان موجودنه وای اود امپریالیستی ارتجاع نهنګانو به‌هغه په‌رذیلانه او خاینانه او وینی څښونکی اوبی رحمانه توګه خوړلی وای، زموږ خلك بیالـــه لوږ ی بی وزلی او تباوی سره مخامخ کیدل، موږله شوروی اتحاد څخه د افغانستان پـــه نسبت دهغه دټینګک او ثابت دریـــځ‌له امله مننه کوو، زموږ دښمنانو ته دغه پوره څرګند اوبیدار دریځ د شوروی‌اتحاد د کمونست ګوند دمرکزی کمیتی د عمومی منشی د شوروی‌اتحاد دعالی شوراد رئیسه هیا ت‌دصدرګران ملګری لیونید ایلیچ بریژنف په وینا کی چی‌په الماتا کی یی د شوروی قزاقستان د جمهور یـــت

دجوړيدو د شپیتمي کا لیزی له امله وکــړه داسی نړودل شویدی .

... موږخپلی وظیفی د شوروی اتحاداوافغانستان تر منځ د دوستی له تړون سره پوره سمی او د ملګرو ملتو دمنشور داساسنامی‌له مخی‌تر پای پوری سرته رسوو او پدی‌باره‌کی باید هیڅ څوك کوم تردید ونه لری موږ دستر ګاونډ ی او وروره‌یواد شوروی اتحاد اونورو سوسیا لیستی هیواد و نو ټو لو انقلابـــی ګوندونو، غورځنګو نو او قوتونو دانترنا سیونـ لیستی مرستی په مننی سره منو د افغانستان دخلك دمو کراتیك ګوند او د افغــــانستان دموکراتیك جمهوریت حکومت خپله وظیفه بولی چی دثور انقلاب ارزښتونه پراخ کړی .ټینګ یی کړی او ملاتړ یی وکړی چی په دی ډول‌د ټولو آزادو خلکو ګټکار او د ټول بشریت‌د ځلانده او نیکمرغی راتلونکی په خاطر د مبارزی په‌کار کی برخه واخلی .

درندو ملګرو ... ځــوانی د انسان پــه ژوند ګی‌یوه ځانګړی دوره ده‌دایوازی دغوړیدو اود معنوی او فزیکی قواوو د ښکلا وخت نه وی بلکی دژوند لاری اود راتلونکی دطرحی جوړ و نی د لاری د ټاکنی وخت اود زړورتیا خلاقیت او فعالیت وخت هم دی د غوړیدلی ټولنی یوتیوریك بنسټ ایښودونکی په‌اوولس کلنی کی ولیکل.

هغه ستر مشر چی باید موږ ته لارښودنه وکړی د بشریت سوکالی‌نیکمرغی اودخپل‌ځان تکامل او بشپړ تیا ده .

ځکه زموږ د خلکونیکمرغی او سوکالی زموږ دقهرمانو او شهیدانو د ګوند او زموږ دګوند سپیڅلی او اصلی اونه اوښتونکی هدف‌دی دغه مطلب د انسانی هدف لوړپراو د ی‌دهمدی هدف له امله دی‌چی‌په زر ګونو هیواد پالونکی ځوانان د وسله والو قواو و ځارندوی ،دټولنیز نظم د ساتنی په بریکاد ونو کی په میړانه‌او ثبات په زړورتیااومیړانی، دانقلاب دارزښتونو دخپل ځان په قربانو لوبی دریغه دفاع کوی اوپه قهرمانی سره ناولی اوبی شرمه دښمن‌چی په‌هر ی وسیلی سره هڅه کوی د ځلانـــدی راتلو نکی په لور زموږ د هیواد د چټکی‌لوړتیا په‌لاره‌کی کانړی واچوی له ماتی سره مخامخ کوی، زموږ د زیارایستونکو خلکو له نیکمرغی نه‌ډکی راتلونکی په خاطر مبارزه ، د انقلاب په‌سلګونو او زرګونو پیاوړی جنګیالی او د پیری ستر قهرمانان مینځته راوړی. د هغوی دبیلګی په اساس باید زموږ ټول ځوانان‌وپالل اووروزل شی زموږد انقلاب په زړورو اوپیاوړو مبارزانو اومد افغانودی دپت اوویاړ احترام وی .

خو ملګرو باید فکر وکړ ومانوتسه تونګ ویل چی‌امپریالیزم‌کاغذی برردی‌هدف‌یی داو چی پخپله دغره‌په سر کښینی او د بشریت عامه وژنه وګوری خوداامحقتوب دی، ملګرو باید داسی فکرو نه کړو چی د ښمن کمزوری دی اودابه ستره اشتباه وی .

دنړی د زیارایستونکو مشر د ښمن ته‌کم ارزښت نه ورکاوه. لکه چی د ستر اتیژیکی‌له پلوه یی هغوی په تاریخ محکومول خو پـــه تاکتیك کی سخت هوشیارو له دی امله باید فکرونه کړو چی دښمن کمزوری دی او بریالیتوب په سادګی سره لاس ته راځی، فیوډالانو

مرتجعینو او نورود ښمنانودپاکستان دواکمنو ټولنو په تیره بیا،دامریکا د بی شرمه امپریا- لیزم ، د چین‌دمرتدو هژمونیستانو، خاین سادات ، داسرائیلو د صهیو نیزم او دسیمې دنورو ارتجاعی قوتو نو په مرسته‌او ملاتړ خپل ټول قوت په چل ول او دوه مخی سره‌په کار اچولی او تراوسه هم هلی ځلی کوی چی زموږ انقلاب کی شنډ کړی او بیا زموږ خلك په‌تیاره او پوهی کی واچوی •

دغه خاینین اوحرفوی سړی وژونکی‌دبهرنیو ناولو پانگه والو او ملیاردرانو د پیسو په وسیله دما شومانوبیگناه ښځواو نارینه‌وسپین- ږیرو وینی تویوی •

لوی خدای او د افغانستان نجیب خلك‌به دغه خبیثان ، دغه طاغوتان ، دغه سړی وژونکی اودغه مرتد ان چی په‌بی شرمی‌اوپه بی‌وجدانی سره لرغونی ملی او د اسلامی ورورولی او هیواد والی دودونه له مینځه وړی سخت تنبیه کړ ی او سزا به ور کړی•

دافغانستان د خلك د موکراتیك گوند د مرکزی کمیټی دریم پلینوم د گوند قوتونو منظم کړل او زموږ قهرما ن وسله وال پوځ یې‌د پوځی تیاری په حالت کی ودر اوه اوهغه له‌ټولو خلکو سره یو ځای د سړی وژونکو باندونواو بهرنیو ځ ره خورو او د هیواد دخپلواکی او آزادی‌د ښمنانو د بیخی له‌مینځه وړلو لپاره مبارزی ته راپا څید •

څه موده دمخه د گوند مرکزی کمیټی،دافغا- نستان د ځوانانو دموکراتیك سازمان او ټولو هیواد پالو ځوانانوته‌داسی‌خطاب وکړ د انقلاب دلوړو هدفونو په وړاندی د هیواد د پت او ناموس او له خلکواومورنی وطن سره دناپایه اوکلکی مینی په وړاندی د خپلی وفاداری په ثابتولوسره زموږ دزړور وسله‌وال پوځ په لور په زیاتی مینی او قوت سره ورودانگی اودهغوی په لیکوکی په پیاوړی توگه او په میړانه او قهرمانی سره ودر یږی دگوند دغه خطاب‌لکه چی موږ باور در لودله پاملرنی لری پاتی نه شو په زرگونو ځوانانو په میړانه‌او خپله خوښه او آگاهانه‌توگه د اردو په‌لیکوکی شامل شول ځکه په اردو کی خدمت چی‌دمیړانی اوهیواد پالنی ښوونځی دی، د افغانستان‌دهر زړور ځوان عالی وجیبه او مقدسه وظیفه ده‌د افغانستان د خلك دموکراتیك گوند د مرکزی کمیټه د افغانستان د دیمو کراتیك جمهوریت انقلابی شورا او حکومت ډاډ ځرگندوی چی ځوانان دغه عالی ښوونځی په زړورتیا اوصداقت سره تیر کړی •

دځوانانو د دیمو کراتیك سازمان غړیود گوند او د افغانستان له ټولو زیار ایستونکو اوقهرمانو خلکو سره د تل په څیر اوږه په- اوږه‌خپله میړانه او حماسه جوړوونکی قهرمانی ځرگند کړی‌په‌میړانــه‌اوزړ ورتیا سره یی زموږ دگران افغانستان دفاع کړی او دښمنان یی‌له جرروڅخه له منځه وړی او ټکولی‌یی دی اودتاریخ کندی ته یی سپارلی دی •

په خواشینی سره باید ووایو دهغو کسانو په منځ کی چی نن یی ددولت، انقلاب اوخلکو په‌مقابل کی وسله پورته کړی‌ده داسی ځوانان هم شته‌چی‌دد‌ښمنانوله کرکی نه ډکوتورونواو دروا‌غو او د سړی وژونکو مسلمان وژونکو او ورور وژونکوباندیستا نودویری اچونی‌تراغیزی

لاندې راغلي دي اوموږ يوځل بيا دوطنداری او انسانيت، اسلاميت او د ورورولي او افغانيت په ټولو عواطفو سره هغو ی ته خطاب کوو چې ایغوڅول شويو ځوانانو او ای بدبختانو نورد دښمنانو دوکه مه خوری خپلو کورنيو دوستانو اوهيواد والو ته بيرته راشي دخپل ځان خپلي کورنۍ او د خپلو هيوادوالو او خلکو خپل وطن اود خپلو پتمنو زيار ايستونکو وطن او انقلاب دگټو په لاره کې په کار او مبا رز ی بيا هم په کار او مبا رزی سره خپلي گناه وی جبيره کړی او زموږ په وطني اصطلاح د پاکيدو لپاره غسل وکړی.دغه شان بی لارو ځوانانويعنی تاسو ته لهدیتربيون څخه خطاب کوم ټول امکانات شته چې د ټولنيز عدالت ۀ برابرى او ورورى په ټولنه کې چې زموږ په گران هيواد کې مينځ ته راغلى ده له سوله ييزواو خوندى پوره حقوقو څخهد يوه برخوردار تبعه په توگه ژوند وکړی شى اوژوند وکړی .

انسان يوازی هغه وخت د ژوند تر وروستيو شيبو پوری خپل ځان نيکمرغه احساسوی چې دده د ځوانی وخت له محتوی نه د ډکی ټولنی لپاره فعال او گټورتير شوی وی .

زموږ په ختيځ خاوره کې داسی روايت دی .

بوزوړ او سپين ږيری سړی په مړاوی اوله غم نه ډکی تندی سره په يوه لاره روان واو خپله ورکه يی لټوله خود هغه په مېند لو بريالی نه شو په دغه وخت کې د ځوانانو يوی ډلی ته چې په خوشحالی او تازگی سره يی په يو ی سمسوری کروندی کی کار کاوه ورسيد او په سختی ژړايی پيل وکړ.

ځوانانو تری په زړه سوی پوښتنه وکړه پلارجانه څه پيښه شويده .

بوډاپه داسی حال کی چې له سترگه څخه يی داو ښکو سيلاو روان وپه نيمه ژبه ځواب ورکړ.

گرانو ځوانانو زما زمنو ډيره خواشينوونکی پيښه راپيښه شويده خپله لهلاسه تللی ځوانی می لټوم خوچې هر څومره هلی ځلی می وکړی مقصد ته ونه رسيدم دغه پرگنيز روايت ځوانانو ته څرگند وی چې د خپلی ځوانی د کلونو ارزښت بايد درك او تشخيص کړی يعنی کولای شی .په وطنی څرگنده لهجه وايم چې ځوانی په ډيره بده لاره کی چې د انسانيت پت پری شرميږی هم مصرف کيدای شی او هم کيدلای شی د ډيرو وياړلو او ډيرو ارښتناکو آرمانونو په لاره کی يعنی د خلکو وطن او دانسان د آزادی د خدمت په لاره کی مصرف شی .

په همدغه شيبه کی د يوه خبره راپه ياد شوه نشم کولای چې د هغه ټوله وينا ټکی په ټکی په عين جملو ادا کړم خو مفهوم يی دادی هغه له ارزښت نه ډك سوغات چې بيه يی نشی ټاکل کيدای په خپله ژوند دی .

په خپله د انسان ژوند دی چې له دی پورته دانسان لپاره بل سترارزښت نشته خو دغه ژوند بايد څه ډول تير شی دا کارمهم دی .وايی چې خوشبخت او نيکمرغه هغه انسان دی چې د ژوند په وروستيو شيبو کی چې ساه ورکوی فکر کوی چې ژوند يی د انسان آزادی ته وقف شوی دی .

انسان یوازی هغه وخت د خپل ژوند تـــر زموږ لیکوالان په خپله ډیره عالی غونډه ورورستیو شیبو پوری خپل ځان نیکمرغــــــه احساسوی چی د هغه د خوانی وختو نه د ټولنی لپاره د انسان د نیکمرغی او د انسان دآزادی لپاره له محتوانه ډك فعال او ګټور تیر شوی وی .

ګرانو خوانانو ګلونه به تیر شی او زموږ ګران افغانستان به زموږ د خلکو او ګوند پــه اراده د وطن د ټولنو قوتو نو په وسیله هرو مرو په غوړیدلی ګلستان په خوشبخــت او نیکمرغه تازه او خلاندہ چاپیریال بدلشی.

دهر هغه وګړی لپاره څومره خوشبختیاو ستر ویاړوی چی په غروراو سر لوړی سره ووایی چی زه د انقلاب سره یو ځای اودهغه ربښتنی مبارزو م او ټول هغه شیان چی نوس زماد هیواد په ژوند کی شته زما د کار ګټه ده اوزما دزړه الهام هم چکی برخه لری .

د افغانستان ویاړلوخوانانوستاسی د خوانی مشعل د ثور انقلاب دهمشنیو وړانګو په وسیله خلانده او روښانه شو چی د ۱۳۵۸ کال دجدی له شپږمی نیټی وروسته دامین فاشیستی باند دیو ناولی یوی ناکی ټولنی پـــــه شان د انقلاب له لاری څخه جارو کړ او خپل بشپړتیایی دو هم پړ او ته ورسید . ددغه پړاو مهم خصلت دخلکو دیووالی او یوموــــوټی کیدو ټینګښت او دافغانستان دخلك دموکراتیك ګوند دهیواددکارګری طبقی او ټولوزیارایستونکو دګوند په مشری دپلرنی وطن دملی جبهی جوړیدل دی. څه موده دمخه دکابل دروشنفکرانو غونډه او دژورنا لستانو او هنر مندانـــــو موسسو ګنګره جوړه شوه اوله څوورځووروسته را ټولیږی نور ډیر مهم تدبیر ونه هم په مخ کی دی .

دغه ټول تدبیرونه او فعالیت په څه دلالت کوی . په دی دلالت کوی چی هغوی ټولونږیوالوته په ډاګه او قناعت بخښونکی توګه اعلاموی چی زموږ خلك او خوانان دګوند او وګړنی دولت په قوت باورلری او دنوی ژوند دجوړولو په لاره کی په ټینګه عقیده له هغوی سره دوان دی او حرکت کوی .

څمکه بزګرانو ته ، کار بیکارانو ته ، کلتور اوپوهه ټولو خلکو ته ، ملی دودو نواوداسلام مقدساتو ته ژورد رناوی ، مړه دی وی بیرته والی ،لوږه یو بیسوادی.دادی زموږ سترهدفونه وظیفی او شعارونه او ددغو ټولو انسانی لوړوو ارمانونو لپاره دافغانستان دخلك دموکراتیك ګوند په سر ښندنی او قهرمانی سره کار او مبارزه کوی ایا صادق او مسلمان سړی ته له دغوارمانونواو هدفونو څخه ډیر ارزښتناك لوړ ډیر نږدی او دیر ویاړلی بل شی شته دی ؟ نه هیڅکله نشته دا څواب غوڅ دی .

موږ له دی امله خوښ یو چی دافغانستان دځوانانو دیموکراتیك سازمان دانقلاب په لاره کی دخپل ګوند په شاو خوا په یوه ګلکه او ټینګه لیکه کی په میړانه اوزړورتیا سره پرمخ ځی .

ګوند داستثمار ګرانو په ضد په طبقاتی مبارزه کی دانقلابی دودونو ټینګوالی اوراتلونکو ځوانانو اونسلو نوته دتیرو نسلو نود تجربو لیږ دونی ته ستراو ارزښتناك اهمیت ورکوی.

دگوند هر غړی دهغه کدرو نه او فعالین بايد له ځوانانوسره کارخپله مهمه وجيبه او خپل ستر گوندی دستور وبولی اوپه عملی توگه د افغانستان دځوانانو د دموکراتیك سازمانله کمیټو سره خپل ملاتړ څرگند کړی .

گوند په‌غور او پاملرنی سره سازمان‌ورکو-لواو سیاسی تجربی ستاسی په واك کې‌ږدی، ستاسی له نوښت‌څخه‌ډکونو یوالواو فعالیتونو نه په خلاقه تو گه وده ورکوی او دځوانانو فعالین په زیاته مینه روزی او پالی دازموږ گډ گوندی او دولتی کاردی .

گوندی‌کمیټی باید افغانستان دځوانانو د دیمو کراتیك سازمان رهبری په هراړ خیزه توگه پیاوړی کړی . ددی مسالی په یادونی سره غواړم تاسی په انقلابی فعالیت کی له کوچنیو خرده گیریو او خرده کار یو څخه ډډه وکړی .

دافغانستان دځوانانو دموکراتیك سازمان دتشکیل له نظره یو مستقل سازمان دی له دولت او حکومت څخه مستقل خو دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند په مشری دټولنیزو سازما نونو دیوی برخی په توگه دپلرنی وطن په‌ملی جبهه کی فعالیت کوی خوله‌گوند سره یو ځای دگوند په مشری له ټولو ستونزو اوسختیو سره سره‌یوه لاره یعنې دخپلوخلکو دترقی لاره ، دنیکمرغی لاره اودخلکو دسو-کالی لاره‌په‌بی امانه توگه اوزړورتیا سرموهی. په پای کی درنو میلمنو اوگرانو دوستانو•

زموږ زړورو ځوانانوستاسی‌جرگه نن اوسبا دمهمو اواصلی مسالو په باره کی خبری کوی او دهیواد دځوان نسل لپاره نوی وظیفی تاکی او دهغو دعملی کیدو په لاره کی‌بی اغیزمن بنی طرح کړی .

اجازه راکړی چی‌په پای‌کی دهیواد دځوانانو ددغی ستری غونډی اوپیوستون‌په‌کار کی‌دزړه له‌کومی دبنواولو یو بریالیتوبونوهیله وکړم اویو ځل بیا دسوسیالیستی هیوادونو اودنړی دنورو هیواد ونودځوانانودبین‌المللی سازمانونو په‌سرکی دشوروی‌اتحاددلیننی کمسمول‌سازمان مخکښو استازیو ته خپلی مننی څرگنده‌کړم.

# ستاسې خېروونې ګورم په هغوکې نه ماتېدونکې اراده

# تصمیم، زړور توب او مېړانه لیدل کېږي

دافغانستان د خلك د دموکراتيك گو ندمرکزی کميتي عمومي منشي دافغانستان د دموکراتيك جمهوريت دانقلابي شورا ر ئيس او صدراعظم ببرك کار مل يو شمير ا نقلابي او پيکـــار غوښتونکي مبــــارزان چـــي دوه مياشتې مخکې ز مو ږ د هيواد او خپلوا کۍ له دښمنانو سره د مبارزې له پـاره د وردګودچك جبهې ته تللي وو او بر يالي کابل ته راستانه شول دانقلابي شورا دمقرپه ښ‌ کی‌دکتنی لپاره و منل او په ډيره صميمانه‌فضا کی يي ور سره خبرې و کړی او داسې يې‌و فر مايل :

۱۵ر۷ر۱۳۵۹

ګرانو او قهرمانو ملګرو !

په دې فضا او دې شيبو کې اجازه راکړی چې دافغانستان دخلك د مو کراتيك ګو ند دمرکزی کميتې ، د سياسي بيرو ددارالانشاء او د افغانستان د دمو کراتيك جمهو ر يت دانقلابي شورا د ر ئيسه هيات له خوا پـه تيره بيا د خپل ځان له خوا تاسې ته ډ ير زور له مهرباني ډك او له و لو لو ډك او د مبارزې درودونه وړانـدې کـړم او د هغـــو ملګرو پاك روح ته چې د ملي پت، نواميسو، خپلواکې د ځمکې د تما ميت او دثور انقلاب په تيره بيا د هغه د بشپړ تيا د نوی پړاو د ښيګنو ددفاع په سنګر کې‌يې خپل سرونه قربان کړی خپل سټر او مبارزه ګو و نکی درودونه و وړاندې کړم او راشي‌دشهيدانـــو ملګرو د د ر ناوی لپاره ټول و دريږو اويوه شيبه چپ شو .

ستاسې خيروته چې ګورم په هغوکی نه ــ ما تيدونکی اراده ، تصميم ، زړور تو ب ، او ميړانه ليدل کيږی ، په عين ز مان کې دمتانت او ميړانې او قهـرمـانی څنګ کـــې ستاسې په خيرو کې لکه د لمر په شــــان ځلانده د نوی ټو لنې د جوړوونکی ا ندمان خيرې و ينم .

زما ډير ښه هيله داوه چې‌که چيری دګوند دستوروای ، که چيری مقرراتو او قواعــــو اجازه ورکول زه به هم د مبارزې په تاوده سنګر کی ستاسې زړورو او ميړنو ځوا نانو په څنګ کې وای ، اوستاسی په څنګ کی هغو کړ او نو او ستونزو سره‌چې ور سره مخامخ شوې ، آن په هغه و خت کې چـې په تش لاس له د ښمن ، هغه د ښمن سره چې هغه دامريکا د نړی خور امپرياليـــزم ، دچين د پراختيا غو ښتو نکو شو و نيزم ، د پاکستان د ارتجاعی ټو لنو ، د عر بـــی ارتجـاع د ســـادات پـه وجـــود کـــی د مصر ار تجاع په شان د افغانستان‌دښمنان پياوړې کوی له تاسې سره مې يو ځا ی مبارزه کړې وای .

اوس موږ يوه ډير د رنده او تاريخي‌وظيفه لرواو هغه داچې له خپل هيواد څخه ددښمن وروستي نښې نښانې ورکې کـړو او زموږ د زيار کښو او کړيدلو ځلکو هر يو په ښار، کلي او بانډه کې د د ی ا حساس و کــړی

چی زه آزادی نیکمرغی او مصئونیت لرم او هیڅوك آن یومیا شی له اجازه پر ته‌زموږ له پو لو نه ز موږ هیواد ته راشی او د غو هیلو ته ر سیدل ډیر تاسی ته ډاډ در کوم چی زیات نژدی او ددغی عملیی په لاره کی په بری او کلکه توگه پر مخ ځو .

تاسی ته ډاډ در کوم او په رسمی توگه‌خبر درکوم چی وینی څښونکی او وحشی باندونه او دامریکا د نړی خور امپریالیزم دسیمی د ار تجاع او د چین شو و نیسزم مزدو ران او بهرنی ا جیران د پا کستا ن له خاوری ز موږ هیواد ته صادر شوی و و دقهر مان ار دو په مر سته او ستا سی زړه ورو او هیواد پالو ځوا نانو په مر سته او د شوروی اتحاد د لوی هیواد د سو له غوښتو نکو دو ستانو په مرسته تولله منځه وړل شویدی .

دشمنان په ابدی ماتی محکوم دی ، محکوم شوی او ماتی یی خوړ لی ده .



دافغانستان د خلك ددمو كراتيك گو ندد مر كزی كميتی عمومی منشی ، دافغانستان‌ددموكراتيك جمهوريت دانقلابی شو را رئيس‌او صدراعظم ببرك كار مل كله چی يوشمير انقلابی او پيكار غو ښتو نكی مبا رزان چی‌دوردگو د چك جبهی ته تللی وو د انقلا بی‌شورا مقر په بڼ كی د كتنی له پاره منلی اوورسره خبری كوی .

# دافغانستان خوانه کارگره طبقه په طبقاتي مبارزه کې خلاق او ستر رول لوبولی دی

دنړۍ دکار ګرانو دبین‌المللي پیوستون دورځې له امله دافغانستان دخلك د دموکراتیك ګوند دمرکـزي کمیټې عمومي منشي، دافغـانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابي شورا رئیس او صدراعظم ببرك کارمل پیغام ۰ ۱۰ر۲ر۱۳۵۹

دافغانستان پتمونو او مبارزو کار ګرانواو زیاراېستونکو !

ګرانو وطنوالو، خوېندو او ورونو !

دمی داومړی ورځې دکارګر دورځې دکار- ګرو دنړیوال پیوستون دورځې ددوران جوړ- وونکې کارګري طبقې ددغه پرتمین جشن‌چې دنړیوالي کارګري طبقې دزرګونو اصیلوزا- منو دپاکووینو په بیه ترلاسه شویدی او د استثمار او ستم په فساد لړلي نړۍ باندې دکار دبري او مقاومت ښکارندوی دی تاسو د انقلاب دټولنیز عدالت ددموکراسۍ، سولې‌او دهیواد دپر مختګ لارې مبارزینو ته دزړه له کومې مبار کي وایم ۰

دافغا نستان خوانه کار ګري طبقه سره‌له دې چې دشمیر په لحاظ کمه ده خود انقلابي کار اومبارزې دښو شرایطو دتامین په خاطر مبارزه کې په هیواد کې دفیوډالي ستم او استبداد په خلاف او دملي اودموکراتیك‌انقلاب دتحقق لپاره په مبارزه کې‌خلاق اوستر رو ل لوبولی دی اوله قهرمانیو څخه ډك او وياړلي دودونه لري ۰

داښ‌۰د۰ګ دکارګري طبقې دمخکښې په نامه، دافغانستان دکارګري طبقې‌او ټولو زیا- راېستونکو دګوند په نامه دخپل ویاړلي‌ژوند په‌اوږدو کې په ښه دپاسه پنځلسو کلو نـو کې تل دهیواد دکارګرانو او زیاراېستونکو د

واقعی گټهور ربښتیانی مدافع دی زموږ ګوند د کارګری طبقی او ټولو زیارایستونکو دحیاتی ګټوپه کلکی اوټینګی دفاع‌سره دکارګری طبقی دایدیالوژی په خپرولو سره ،دپراخ تبلیغی اوترویجی کار په مرسته اودنړیوالی کارګری طبقی او دافغانستان دکارګری طبقی دډیر وښوویاړلو عنعنوی اوارزښتناکو تجربو په ژوندی ساتلو او په کاروړلو سره دهیواد د کارګری طبقی اوټولو زیا رایستونکو دګوند په توګه دزموږ ټولنی او کارګری نړیوال غورځنګ منلی دی ۰

زموږ ګوند دکارګری طبقی دڅورنده دوران جوړوونکی ایډیالوژی دافکارو په رڼا کی وکولی شول زموږ دټولنی دتکامل سمه لاره ډیره ښه وپیژنی او دهغی دقانونمندی په لاره کی حرکت وکړی دکارګری طبقی دایډیالوژی له مبتکرانه او خلا ق عامو لارښودنو څخه په کار اخیستلو سره او زموږ دټولنی دخاصو مشخصاتو په نظر کی نیولو سره د افغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند په لارښودنه دوطنپالو منصبدارانو او سر بازانو په مرسته او زموږ دخلکو د پراخو پر ګنو په پیاوړی اوغوخ ملاتړ سره دثور فیوډالی ضد او میریالیستی ضد، ملی او دموکراتیک انقلاب بریالی شو ۰

دانقلاب په‌بری سره دافغانستان دکارګری طبقی په لارښوونه د هیواد ددموکراتیک او وطنپالو قوتونو دحاکمیت دتحقق‌لپاره امکانات مینځته راغلل اودزیار ایستونکو قشرو نـو او طبقوپه تیره بیا له بزګرانو سره چـی زموږ دهیواد دزیارایستونکـو اوسیدونکـو اکثریت دکارګری طبقی دطبقاتی پیوستو ن دعینی زمینود پراختیا لپاره وړ شرایط بلـل کیږی پیدا شول ۰

کارګره طبقه دټولنیز تولید په سیستم‌کی دخپل مقام له مخی دمننی، دسپلین منی او انقلابی والی درجی له مخی او دخپل ایډ یا- لوژیك مترقی ماهیت او دریځونو له مخـی کولای شی او باید دزیارایستونکو دطبقاتی مبارزی محور اورهبر اودټولو زیار ایستونکو دحاکمیت ممثل وی لکه چی اوس زموږ په هیوادکی د.ا.خ.د.ګ دا دکـارګـری طبقـی جنګیالی ، پوه ، متشکل او مخکښ ګردان او بزګرو او روښان فکرانو سره او دهیوادله ټولو دموکراتیکو اووطنپالو قوتونو سره پـه یوالی کی دکارګری دحاکمیت نمایندګی کوی دافغا نستان دموکراتیك جمهوریت په‌اساسی اصولو کی داسی ویل شویدی ۰

(دافغانستان دخ.د.ګ دغه دهیواد دکارګری دهیواد دکارګری طبقی او ټولو زیارایستونکو ګوند دټولنی اودولت لارښوونکی اوســوق کوونکی قوت دی دکارګرانو، بزګرانو،روښان فکرانو ټولو زیارایستونکو اودملی اودموکر- اتیکو قوتونو دارادی او ګټو څرګندوی او زموږ په واحد وطن افغانستان کی دټولو او- سیدونکو خکو دواقعی ګټو ثابت قدمه مدافع دی ۰)

دافغانستان د خ.د.گ دغه هیواد کارگری طبقی بلا انتزاع نماینده دسیاسی قدرت په لاس‌کی لرلو سره دهغه له طبقی اووفادارو متحدینو له‌ټولو دموکراتیکو اووطنپالو قوتونو سره دکارگری‌طبقی دلازیات پیوستون دټینګتیا او ژورتیا دتامین په لاره کی په کلکه مبـارزه کوی څکه په ټولنیز عدالت او پرمختګ باندی ولاړی نوی ټولنی دمنځته راوړلو ، دستم او استثمار دله منځه وړلو اودمصئونو انسانی شرایطو په راپیدا کولو کی دکارگری طبقی وروستی بری له ټولو زیاتایستونکو سره په طبقاتی یووالی اوپیوستون کی نغښتی دی. دکار ګری طبقی او دهغه دمخکښو ګردا نو له یووالی نه پرته دخلکو یووالی، اودخلکوله یووالی نه‌پرته دنوی ټولنی‌جوړول امکان نلری دافغانستان دخلك ددموکرا تیك ګوند دغه د کارگری طبقی نوی ډول ګوند دپلرنی وطن دپراخی جبهی، پراختیا اوغښتلتیا په خاطر دلاښو شــرایطــو دمنځته راوړلو لپاره ددی طبقاتی پیوستون دپراخوالی اوژورتیا په‌لاره کی په پرله پسی جار سره یوځای ستـری وظیفی سرته رسوی دافغانستان ددموکـر ـ اتیك جمهوریت په اساسی اصولو کی ویل کیږی :

(دافغانستان په‌دموکراتیك جمهور یت کی دزیاتایستونکو قدرت دپلرنی وطن په پراخی ملی جبهی باندی ولاړ دی چی دافغانستان د خلك دمو کراتیك ګوند په‌لارښوونه دنوی ، آزادی اودموکراتیکی ټولنی دجوړولو د عمومی پروګرام پربنسټ ټول کارګران، بزګران ، کسبګر، کوچیان، روشنفکران، ښځی اوځوا ـ نان او دټولو ملیتونو او قومونو استازی ټول مترقی دموکراتیکی اووطنپال قوتونو اودهیواد ټولنیز اوسیاسی سازمانونه سره متحدکوی.)

د.ا.خ.د.گ دواګمنی ګوند په توګه نه یوازی دکارګرانو او دهیواد دټولو زیاترا ـ یستونکو دژوندانه دشرایطو دښه والـــی وظیفه پر غاړه لری. بلکی دکارګرودلاپراخ تشکل او لازیاتی پوهی‌او په تیره بیا پـــه ګوند او کارګری اتحادیو کی دهغوی دجلبولو په لاره کی په کلکه هڅه کوی. څکه دانقلاب وروستی بری یوازی او یوازی دکارګری طبقی دغښتلی تشکل، پراخی‌پوهی‌او غوښ اورهبر ـ ی کونکی رول له لاری امکان لر ی ملی او دموکراتیك انقلاب دمترقی دریځ‌په غوره‌کولو اوپه‌تیره بیا له فرد څخه دفرد له‌استثمارنه دخلاصی نوی ټولنی په‌جوړولو او د دولـــت داداری په کـــار کـــی پـــه پـراخ ګډون ، د کــــار گــــر ی طبقـــــــی او دهغـی دطبیعی او وفادارو طبقـاتی متحـدینـو پـه رسالت سره سرته رسیدلی شی .

د.ا.خ.د.گ او دا.د.ج حکومت د هیـواد دملی واقعی دغه پرله پسی ګټو مدافعین د هیواد دټولنیز او اقتصادی تکامل اوودی د تامین دوظیفو له سر ته رسولو سره یوځای دافغانستان صنعتی کول، دکرنی میکانیزه‌کول. بیکارانو ته دکار ورکول اودهیواد دټولو زیاـ رایستونکو دکار او ژوند دشرایطو ورځ پـه ورځ ښه والی اودهغوی دمادی او معنوی‌ژوند دسطحی لوړ ول خپله یوه غوره وظیفه بولی، دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت اساسی اصول دکار له حق سره په ارتباط کی داسی

اعلاموی :(دولت ټولو خلکو ته دګټورټولنیز کار دحق دتامین لپاره تدبیرونه نیسی دکار شرایط کنټرولوی اودکار په برخه کی مترقی قوانین وضع او تطبیقوی .)

ګرانو کار ګرانو زیار ایستونکو وطنوالو!

سږ کال دبی وزلواو کړ یدلو دمبارزی اؤ ویاړ دبچیانو جشن یعنی دکارګر انوجشن په داسی شرایطو کی نمانځو چی زموږ هیواد دترورواختناق دویرونکی شیشکی له سیوری څخه خلا صی شوی او انقلاب خپله اصو لی تکاملی لاره په بری سره وهی .

ددی ویاړ لی جشن له امله یوځل بیا د هیواد د خپلواکی ، ملی واکمنی د ځمکی تمامیت ددفاع او دامپریالیستی اوانقلاب‌ضد یرغل پرضد مبارزی په لاره کی، دافغانستان دخلکو دانقلابی ښیګنودساتنی په لاره کی او له سری څخه دسړی له هرډول استثمار نه دخلاصی نوی ټولنی دجوړلو په لاره کی د جنګیالی کارګری طبقی او دهیواد دټولومبارزو زیارایستونکو په نمایند ګی د٠ا٠خ٠د٠ګ اودا فغانستان دموکراتیک جمهوریت حکومت کلکه او ټینګه اراده او عزم څرګندوم دغه راز پدی ویاړلی کارګری ورځی کی چی د طبقاتی دښمنانو پرضد دنړی دټولو کارګرانو په ګډه مبارزه کی ددوی دپیوستون ژوندی ښکارندوی دی‌یوځل بیاله‌بین المللی کارګری جنبش سره زموږ دقهرمان دا.خ.د.ګ دافغانستان دکارګری طبقی او ټولو زیارایستونکو دګوند ټینګه وفاداری اعلاموم .

دثور انقلاب ددوهم پړاو دبری او د هغه ددوهمی کالیزی اودمی دلومړی ورځی دکارګرانو دنړیوال پیوستون دجشن له امله د افغانستان ټولو کارګرانو ته دزړه له کومی بلنه ورکوو چی له خپلوکارګری اتحادیوسره یوځای شی دخپلو طبیعی اووفاداری متحدینو یعنی بزګرانو اوټولو زیارایستونکو اوانقلابی اووطنپالو روښان فکرانو سره خپل یووالی تامین او ټینګ کړی اوهمدارنګه دهیواد دپوهوکارګرانو برخی دخپل جنګیالی ګوند د ا٠خ٠د٠ګ دغړیتوب ویاړ ترلا سه کړ ی په کار ګری اتحادیواو دا٠خ٠د٠ګ کی‌دافغانستان دکارګرانو لاپراخ‌تشکل دایډال دسرته رسولو په‌منظوراو دهیواد دنوروزیارایستونکو خلکوله طبقواوقشرونوسره دهغوی دیووالی د ټنګتیا لپاره دافغانستان دخلکو دویا لـــی دموکراتیک‌ګوندله ټولوغړوڅخه ملګرتیا سره غواړم چی دهیواد له‌کار ګرانوسره دژورواو هراړخیزو پیوند ونو په منځه راوړلو اودثور دبریالی انقلاب دهدفونو او ارمانونود تحقق په خاطر داګاهانه مبارزی لپاره دهغو په جلب او جذب، تشکل او تیارولو کی پرله پسی هڅه او کوښښ وکړی .

ـژوندی او بریالی دی‌وی دنړی کارګـره طبقه .

ـ ژوندی او سرلوړی دی وی‌دافغانستا ن څوانه کارګره طبقه .

ـنیکمرغه او بختوره دی وی دمی‌لومړی، دکارګرانو دبین المللی پیوستون ورځ .

ـ دکار ګردغه ستر او ځلانده جشن .

ـ ژوندی او پیاوړی دی وی د.ا.خ.د.ګ د افغانستان دکارګری طبقی اوټولوزیارایستونکوګوند.

# دافغانستان دښځو دموکراتیک سازمان بریالی توب دهغه دلیکو بووالی په تامین کی دی

دافغانستان دښځو ددموکراتیک سازمان دفعالینو لومړی سیمینار تهدافغانستان د خلک دموکراتیک گوند د مرکزی کمیټی دعمومـــی منشی دافغانستان ددموکراتیک جمهوریـــت د انقــلابـــی شـــورا د رئیس او صــدراعظم ببرک کارمل پیغام •

۱۷ر۵ر۱۳۵۹

ملگرو دوستانو !

دافغانستان دخلکدموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت د انقلابی شورا په نمایندگی او دځان لخوا د افغانستان دښځو ددموکراتیـــک سازمان د فعالینو دلومړی سیمینار دجوړیدو له امله د ثور انقلاب دبشپړتیا دنوی پړاو نهوروسته تاسی اوستاسی لهلاری دهیوادټولوشرافتمندواو قهرمانو ښځو ته مبارکی وایم •

ستاسی سیمینار دهیواد دتاریخ لپاره په ډیرو ارزښتناکو شیبوکی جوړ یږی خوورځی مخکښی دگوند دمرکزی کمیټی دریم پلینوم جوړ شو او لکه چی پوهیږی پدغه پلینوم کی دانقلاب ضد باندو ونو دبیخی ټکولو په غرض دهغوی په وړاندی دمبارزی دسختولو مربوطی مسالی او دوسله والو قوتونو ددولتی امنیت او ټولنیز نظم دارگانونو دټینگښت او پدی برخه کیدخلکو وظیفی وڅېړل شوی او لا ز م تصمیمونه ونیول شول د افغـانستان دښځو دمو کراتیک سازمان دهیواد دښځو دمبارزی دمشعل لرونکو په توگه ددغو فیصلو دتحقق په لاره کی ډیری دروندی او ستری وظیفـی لری او کولی شی دمیندو، خویندواو زمونږ انقلابی نجونو دمبارز سازمان په توگـــه د ملالیو او عایشودوږیالوړو دودونوددوامورکو-

ونکو او وارثانو په توگه دثور انقلاب دارز-ښتونو په ساتنه او پراختیا په هیواد کی د سولی او کراری فضا په پیدا کولو زمونږ د زیار ایستونکو خلکو په هوسایی او په پای کی دنوی ټولنی په جوړښت کی چی زمونږ گوند ستر هدف دیستراو ارزښتناک رول ولوبوی •

بایـد وویل شی چـی ښځی نه یوازی د ارتجاع دظلم او تیاری اودانقلاب ضد قوتونو په وړاندی دخپلو بچیانو دروښانه آیندی په غرض په مخامخ مبارزه کی دمبارزو نارینهو سره اوږه په اوږه گام پورته کړی، بلکی د سو له بیز ژوند په جوړ ښت دکورنی دکانون په خوشحاله ساتلو دملیغورمحودونو پهساتنه اوبشپړتیا او په تیره بیا زمونږ دبچیا و یعنی دهیواد دراتلونکی نسلونو په روزنه کیستر رول لری• دافغانستاندخلك دموکراتیک گوند مرکزی کمیټی دهیواد دزیارایستونکو ښځو دکارگرو، بزگرو، کسبگرو اونورو دحقوقو او په تیروخت کی دافغانستان دښځوبی شمیر قربانیو دتامین په غرض دظلم او خپل سری په وړاندیدافغا نستان دښځو د دموکرا تیك سازمان دقهرمانانه مبارزی په منیسره پوره باورلری چی دغه مبارز سازمان به هم دزیا-رایستونکو او مبارزو ښځو دتنظیم په برخه

کی دهیواد دښځو دروزنی دگوند او ویاړ لی ښوو نځی دپیاوړی قوتدهمکاری په توگه زموږ دگوند اودولت دانسانی لوړو هدفونو په تحقق کی خپل جوړوونکی رول په سر لوړی سره اجرا کړی اوخپل تاریخی ویاړونه به زیات کړی •

دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند مرکزی کمیټه باورلری اوزه وربانده ټینگار کوم چی دافغانستان دښځو دموکراتیك سازمان هغه وخت کولی شی تر ښخوا ډیر بریالی وی اوخپلی انسانی ستری وظیفی په پیاوړتیاسره سرته ورسوی چی د هغه دلیکو یووالی تامین شی اوپه غندنو، ناسمو سیالیو، خودخواهیو سره چی دفیوډالی دتیروختونو څخه پاتی دی په هغو کی کومه نښه نه وی پاتی شوی •

دبلی خوا دافغانستان دښځو دموکراتیك سازمان وظیفه لری ددموکراتیك اووگړنسی خصلت لرونکی سازمان په توگه دخپل گوند اوسازمان داصولودکړنلاری په اساس چی استقلال یی په رسمیت پیژنی دهیواد دښځو دپراخو قشرونو غوښتنی منعکس کړی اوپه عمل کی ډیره پیاوړی همکاری له گوند او نوروټولنیزواووگړنی سازمانونوسره ټینگه کړی په دی بـــر خـه کـــی اهمیت لـری چی دبیلو بیلو سازمانونو په کار کی دتکرار مخه ونیول شی او هریو دخپل فعالیت ټاکلی برخه پرمخ بوزی له بلی خوا باورلرم چی گوند ټولنیز اووگړنی سازمانونه او حکومت په دښځوسازمان سره دمربوطو وظیفو په سرته رسولو کی لازمی مرستی وکړی •

دافغانستان دمو کراتیك جمهوری حکو مت اودافغانستان دښځو دمـو کـرا تیـــك سـا ز مـــا ن د هیـــواد د ښځـــو پـه مربوطه برخه کی په خپلو فعالیتونو کی کوښښ کړی چی دبین المللی جرگی دنتیجو اوپریکړو تحقق ، دښځی ددوهمی لسیزی دنیمایی لپاره بایدپه کلکه په نظر کی ولری •

ملگرو ،دوستانو او مبارزو خویندو !

تر هغه ځایه چی زه معلومات لرم ستاسی سیمینار ستر او لوی هدااو نه غوره کړیدی او هغه دافغانستان دښځو ددموکراتیك سازمان دکادرونو دسیاسی اوټو لنیزی پوهی دسطحی لوړول، په نوری هیوادونو کی دښځو ددموکراتیکو غورځنگو دتجر بو څیړ نه. دهیواد له انقلابی غورځنگ سره دافغانستان دنجیبو او پاکو ښځو دزیاتو جلبولو دلارو چارو لټول دثور انقلاب دهدفونو او شریفانه ارمانونوپه عملی کولو کی دښځو فعاله ونډه اخستنه او دټولنیز عدالت پر بنسټ دتو لنی جوړولدی. باید وویل شیچی په رښتیا ستاسیسازمان داسلام مقدس دین دهیواد دخلکو دودونواو عنعنو اود هیواد دتاریخ په اوسنیو شیبوکی دکورنی کانون ته داحترام او رعایت په پوره نظر کی نیولو سره ډیری شریفی اوستر ی وظیفی غوره کړیدی •

ستاسی دسیمینار دهدفونو په پوره تائید سره دهیواد دخلانده راتلونکی په غـرض د مبارزی په سترکار دهیواد هروگړی اوکورنی ته دنیکمرغی ژوند په پیدا کولو اودسولی ، امنیت خپلواکی پرمختگ اوټولنیز عدالت په لاره کی ستاسی دبشپړ بری اوزیاتو بریالیتوبونو هیله کوم •

دافغانستان دخلك ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی دافغانستان ددموکرا ـ تیك جمهوریت دانقلابی شورا رئیس اوصدراعظم ببرك کارمل •

# ابن سینا په لسمی پیړی کی د علم او فلسفی د اسمان ځلانده ستوری دی

**دبلخی ابوعلی‌سینا دزیږیدنی دزرم کال‌له امله دافغانستان دخلك ددموکراتیك گوند د مرکزی کمیټی دعمومی‌منشی دافغانستان ددمو کراتیك جمهوریت دانقلابی شورا ذرئیس او صدراعظم ببرك کارمل پیغام : ۱۳۵۹ر۶ر۸**

گرانو وطنوالو !

محترمو پوهانو !

دډیری خوشحالی ځای دی چی دادی موږ د ثور دبریالی انقلاب په بشپړ تیایی پړاوکی دهیواد معنوی فرهنگ دساتنی پیاوړتیا او غنی کولو په باب دافغانستان د دمو کراتیك جمهوریت دکلتوری کړنلاری له مخی دبلخی قدرمن پوه او حکیم شیخ الرئیس ابوعلـــی حسین ابن سینا دزیږیدو زرمه کالیزه‌نمانځو او هیله لرو چی دغه نمانځنه دعلم دستر میړه وطنوالواو دنړی ټولو هغوپوهانو ته بنه او بختوره وی چی ددغه ستر شخصیت له ارز- ښتناکو اثارو سره بلدتیا او مینه لری او ددغه پوه په اثارو باندی په ملی اونړی‌وال ډگر کی نوی څیړنی وکړ ی.

ابن سینا په لسمه پیړ ی کی د علـــم او فلسفی داسمان ځلانده ستوری دی چی په یوه بلخی کورنی کی دبخارایی ستاری پــه لمن کی دهغی ورځی دپوهی او اندیشی‌پرافق وځلیداوله هغه څخه یی ستــری فکــری ا و علمی زیــرمــی تــر څیړنــی او تحقیق لاندی ونیوی چی بشریت زده کړی وی زیاتـــــی تجربی یی وکړی او په دری اوعربی ژبه یی ارزښتناکه اثار پریښودل چی وروسته بیاد هماغه وخت په علمی ژبو یعنی لاتین اونورو ژبوژباړه تدریس کیدل .

په وروستیو لسو پیړیو کی دابوعلی سینا سترعلمی شخصیت ته آسیایی ملتونواودعربو اواسلام په نړی کی زیات درناوی کیږی او په طبیعی علومو ،اجتماعیاتو، اخلاق اوسیاست کی دهغه اثار دعلم او فلسفی دمدرسو له درسی متونو څخه دی .

دابو علی‌سینا علمی‌چلند دتجربی اودعلمی ازمایښتونو اوله تجربی او عمل څخه دنتیجی اخیستلو پراسلوبو ولاړ دی اوله دی امله یی په زیاتو فکری اوعلمی موراد وکی په نویو ازمایښتونو لاس پوری کړی اوپه خپلـــو علمی هلو ځلو کی نوی او تازه افکار او نتیجی لاس ته راوړی دی .

بلخی ابن سینا دعالم او حکیم اومتفکر په توگه په‌لوړ مقام سربیره دسیاست اواداری په برخه کی هم فعال دولت مداراوپه کار پوه هاود سیاست او جهانداری په باره کی‌یی‌هم گټوری اندیشی او لیکنی پر یښی دی .

ابن سینا دتحصیل له شل کلنـــی دوری وروسته له لوست تالیف،طبابت، وزارت، سـولی، مبارزی ،بریالیتوب، کډی کولو،پټیدو او گوښه کیدو څخه ډك ژوند درلود چی په ټولو سختو پړاونوکی‌یی قلم‌له‌لاسه‌نه‌دی لری کړی او په سفر او حضر ، امن او خطر کی

یی گټور اثار لیکلی اوتالیف کړیدی .

افغانستان شخصیت زیږوونکیخاوره ده تل یی دبلخی ابومشعر ، بلخی ابوزید او جابر خراسانی او ابوالعباس احمـــد سرخسی او البیرونی او نورو سلگونو پوهـانو په شان ستر علمی شخصیتونه په هر عصر او وخت کی نړی ته وړاندی کړی چیابوعلی سینا یو له دغوویاړ ونو څخه دی .

سږکال دشوروی ازبکستان دجمهوریت په مرکز تاشکند کی دیونسکو لهخوا په بین-المللی سویه او زموږ په هیواد دافغا نستان په دموکراتیك جمهوریت کی په ملی سویه دغه ستر شخصیت په درناوی سره نمانځل کیږی او دعلم او فلسفی او بشری تفکر په لړکی دده دلوړ شخصیت قدر کیږی .

لکه چی ستر علمی شخصیت ابوعلی سینا په وروستیو لسو کالونو کی دختیځ اولویدیز تر مینځ دفکری او علمی کړی رابطه وه اوس هم دی دافغان اوشوروی ددواړو دوستو خلکو گډویاړدی او موږ دده دزیږید ودزرمی کالیزی دپر ځای کولو مراسم په پوره اراده پهداسی حال کی نمانځو چی په شوروی ازبکستا ن او تاجکستان کی هم ده‌په یاددرند ی غونډی کیږی .

لکه چی پوه اودپوهی میړونه تل دټولو بشری ټولنو گډ میراث دی دافغانستان دموکراتیك جمهوریت دخپلی کلتوری کړنلاری له مخی دعلم او عالمانو دپیاوړتیا اوروزلو دخلکو په خدمت کی دپوهی اوانديښنوپړاندی کولو ته ککله پاملرنه کوی او له بلی خوا هم بلخی ابن سینا خپل گټور او فعالژوند علم اوپوهی ته وقف کړیو له دی امله موږدده دعلمی پاتی پوهی ته په احترام سره قدر-دانی کوواو هیله لروچیدهغه وطنوال، دهغه د فرهنگی میراث درناوی وکړی اودهغه دفکری آثارو په برخه کی زیاتی څیړنی اوگرویږنی اوپاملرنه وکړی اودنوی پوهی په زده کولو کی تل دابن سینا دغه خبره‌یی یادولری .

هغه څوك چی لوړو مرتبوته‌نه دی رسیدلی یوازی علم په هغه دغه مطلب ته ورسوی .

دهیواد نود پوهانو او لههغوی څخه دبلخی ابن سینا دخاطری او خدمتونو دنمانځنی او درناوی دپیر ښه‌ښه دادهچی زموږاوسنیپوهان او څیړونکی زموږ دپخوانیو عالمانو او نامتو کسانو علمی، فرهنگی اوادبی میراث په هراړخیزه توگه مطالعه اوڅیړی اوهغه دساینس او تکنالوژی له اوسنیو غوښتنو او دمعاصری نړی دبشپړ تیایی بهیر له اړتیاوو سره برابر کړی چی وکولای شی هم زموږ دخلکو علمی او ملی ویاړ ونه وساتی اوهم هغه زمو ږ د زیاراېستونکو خلکو دسوکالی او نیکمرغیپه خدمت کی په کار واچوی .

اوس چی ددغه ستر شخصیت دزیږیدنی دزرمی کالیزی مراسم په قهرمان اوانقلابی افغانستان او دشوراگانو په ستر هیواد او دنړی په علمی ټولنو کی پر ځای کیږی موږ دخپل ځان اودخپل هیوادټولو خلکو ژوردر-ناوی دهغه لوړ او ستر علمی شخصیت ته وړاندی کوواو دهغه گران روح ته‌زیاتدرودونه استووو او غواړو چی دهغه دپوهی اوڅیړنی پیاوړی روح تل دعلم او عمل پهلاره کی زموږ دځوانانو دهمت مرستیال وی او دپوهی په زده کړه او دڅیړنی په طرز اوعلمی انتقادکی په خلاصو سترگونه هغه څخه الهام واخلی .

# د بیسوادی له منځه وړل د یوې ورځې کارندې
# او پوازې د پروګرامونو او قوانینو په طرح حل کیږي

د سواد د بین المللي ورځې له امله د افغانستان د خلك د دموکراتیك ګوند د مرکزي کمیټې د عمومي منشي د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت د انقلابي شورا د رئیس او صدراعظم ببرك کارمل پیغام : ۱۷ر۶ر۱۳۵۹

ګرانو هیوادوالو !

اجازه راکړي د بیسوادی پر خلاف دستر جهاد په اعلام سره تر ټولودمخه زمونږ دګوند زمونږ د دولت او دزاړه‌اوشمتن فرهنګ لرونکي افغانستان د خلکو د ژغورنده‌انقلاب د آرمانونو له مخې او د بین المللي موسسو تصمیم له مخې چه هر کال د سنبلې او ولسمه ورځ د سواد د بین المللي ورځې په توګه نمانځل‌ه کیږي هغو ټولو کسانو ته چې د انساني‌فعالیت پدغه ارزښتناك ډګر یعنی د بیسوادی پرخلاف مبارزه او د خلکو د پرګنو د درك او پوهې دسطحې په لوړولوکې په‌کار بوخت دي دګوند دولت اوخپل ځان منني اومبارکي وړانـدې کړم او زمونږ‌دګران هیواد انقلابي افغانستان د‌ترقي او لوړتیا لپاره په دغه شریفانه کارکې دهغوی لازیات بریالیتو بونه وغواړم ۰

زمونږ د هیواد د بشپړ تیا په اوسنی پړاو کې په‌داسې شرایطوکې چې له یوې خوازمونږ په‌وړاندې دوروسته والي دلیرې کولو په باب ستري اقتصادي او ټولنیزې وظیفې پرتې دي اوله بلې خوا د ارتجاع او امپریالیزم دښمن قوتونه د امریکا د امپریا لیزم په سر دمداری اودهغه چینایي خاینو انډیوالانو شیطانـي قوتونو زمونږ د دموکراتیك جمهوریت پرخلاف په‌نا اعلام شوې جګړه لاس پوری کړیدی‌او زمونږ پرخلاف له هرې ناوړې وسیلې څخه‌پـه تیره بیاله شرموو نکو تبلیغاتي لارو چارو او روحي جګړې څخه کار اخلي د باسوادولواود خلکو د پرګنو د درك او د پوهې د سطحې دلوړیدو مساله زیات اهمیت لري ۰

باید څرګنده کړو چې د بیسوادی دله‌منځه وړلنه یوازې دافغانستان د بشپړ تیا داوسنې پړاو د وظیفو او هدفونو له مخې مطرح ده بلکې د نوې او سمسورې ټولنې د جوړولواود انساني عدل دلیر لید له مخې د فرهنګي‌انقلاب دمهمې برخې په توګه زیات اهمیت لري‌څکه ددغه شان یوې ټولنې‌جوړول د پوهو، باسوادو او دلوړدرك لرونکو وګړو کار دی ۰

له همدې امله د افغانستان د خلك دموـ کراتیك ګوند او د افغانستان دموکراتیـــك جمهور ی حکومت د بیسوادی ،دله منځه‌وړلو اود تنکیو ځوانانو د پاره د ښوونې او زده کړې دپراخو امکانا تود برابرولو مسالې ته زیات اهمیت ورکوی او هم د ګوند په کړنلاره اوهم د افغانستان د دموکراتیك جمهوریـــت په اساسی اصولو کې په ډاګه په هغې‌باندې ټینګار کیږي ۰له هغو څخه د اساسی اصولو ۲۴ـ۲۶ـ او ۲۸ ماده د ټولنیزې او فرهنګي

پرمختیا ، دملی او مترقی پوهنی دودی اود بیسوادی دله منځه وړلو د پاره د دولت‌پالیسی اود هغه اساسی وظیفی ټاکی •

خو باید وویل شی چی د بیسوادی دلـــه منځه وړل د یوی ورځی کار نه دی او یوازی دپروګرامونو او قوانینو په طرحه نه حل‌کیږی دغه راز دغه مساله یوازی د ګوند یا دو لت کارندی بلکی د دی دپاره چی زموږ ټول خلك دبیسوادی له منګولوڅخه وژغورل شی دوامداره له زغم ډکه اوپه رښتیاسره پرګنیزه پراخه اوعمومی مبارزه ضروری ده اوباید د خلکود دپراخو پر ګنو دلیك لوست زده کولو کار نه دسلطنتی ، اشرافی او دداود قلابی جمهوریت دواکمن هیات تر در وغجن شعار او د امیـــن درژیم تر خاینانه لارو چارو لاندی چی د خلکو دربښتنی سواد زده کولو پر ځای یی په‌حقیقت کی خلك دسواد دزده کولو پر ضد راوپارول په‌سمو علمی او عملی لارو چارو سره‌وشی•

باید وویل شی چی له بیسوادی سره د مبارزی په برخه کی د ګوند ی سازمانونود ټولنیزو او پرګنیزو سازمـانـونو له هغـــو څخه د وسله وال پوځ او څارندوی د سیاسی ارګانونو وظیفی ستری او ارزښتناکی دی•

دغه سازمانو نه او ارګانونه باید خپل‌کار داسی تنظیم کړی چی له څه مودی وروسته یوتن هم په ټولنیزو او پرګنیز و سازمانونو کی‌په غړیتوب سره بی سواده پاتی نشی او هرسرتیری چی خپل مقدس‌خدمت سرته‌رسوی دیو باسواده وګړی په توګه خپل کورته ستون شی‌د افغانستان د خلك‌دموکراتیك ګونداود افغانستان دموکراتیك جمهوری دولت به د بیسوادی دله منځه وړلو د پاره د مبارزی‌پتمن کارته زموږ دخلکو دودونو اورواجولو په پام کی نیولواو کلك رعایت سره د نړی دعلمی شتمنو تجربو او سترو ارزښتو نو څخه پـه کار اخیستلو سره او د علمی او منطقی پلانونو له‌مخی په پرله پسی ډول دوام ورکړی چـی پدی وسیله زموږ ګران هیواد قهرمان افغا- نستان د بیرته والی، بی وزلی او ډول ډول ناروغیو څخه له‌ژغورنی سره سم‌د(مړه‌دی وی بیسوادی) تر شعار لاندی د بیسوادی په لـه منځه وړلو هم بریالی شی او د ټولودباسواده اودعلم او فرهنګ د غوړیدنی په خاوره بدل شی •

په‌همدغی ستری هیلی سره یو ځل بیاد سواد دنړیوالی ورځی له امله دټولو هغـــو کسانو لپاره چی د هیواد په لیری اونږدی کلیوکی په کار ګری موسسو کی د قهرمان وسله وال پوځ او څارندوی په قطعاتو او نوروځایو نو کی د پتمنو او زیار کښو خلکو دلیکه لوست زده کولو په پتمن کاربوخت دی دخلاند و بریالیتو بونو هیله کوم •

(ببرک کارمل )

## نن له هر وخت نه زیات دجگړې ضد مبارزه او دخلکو امپریالیستي ضد مبارزه سره غوټه شویده

**دافغانستان د خلکد دموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی د عمومی منشی د افغانستان ددمو ـ کراتیك جمهوریت د انقلابی شورا د رئیس او صدراعظم ببرك کارمل لخوا دغه پیغام دسولی په خاطر د خلکو د نړیوال پارلمان دگډون کوونکو په نامه د سو لی د نړیوالی شورا په نوبنت صوفیی ته لیږل شویدی :**

۱۳۵۹ر۶ر۳۱

دسولی لپاره دخلکود نړیوال پارلمـــــــان محترمو برخه والو د ملتونو او خلکو تر منځ داړیکو په دغو حساسو شیبو کی چی له یوی خوا امپریا لیستی پوځی قوتونو د بین المللی سولی او آرامی په ضد نوی توطئی پیل کړیدی اوله بلی خوا د سولی او ترقی د پلوی قوتونو بین المللی پیوستون لاپسی مشخص ،لاپسی پیاوړی او لاپسی عملی کیږی او د هغوی دجگړه غوښتونکو او ورانوونکو اقداماتو پر ضد پراخه نړیواله جبهه جوړوی د سولی لپاره د خلکو دنړیوال پارلمان جوړیدل یوه ډیره مهمه او تاریخی پیښه ده •

دادی موږ د هغه یو تاریخی پړاو په پیل کی یوچی امپریا لیزم د مترقی غورځنگو نو اود خپلو درونی تضـادونـو د اوج پــه وړاندی کمزوری او وارخطا کیږی په غریزی او ناسنجیدلو عکس العملو نو لاس پوری کوی د جگړی چامی اغوندی د جنگ پیکوزپیل کوی اوله لیونتوب نه په ډك تبلیغاتی کارلاس پوری کوی•

امپریا لیزم یو ځل بیاددیتانت د ارزښتونو په ورانو لولاس پوری کوی او سنی پــوځی انډول چی د وسلو د کموالی ضروری بنسټ جوړ وی گډوډوی او په ډاگه خپل ټول پوځی پروگرامونه دیونو ی نړیوال جنگ د مقیاس اوابعادو دځرنگوالی په بنسټ برابروی اوپه دی بنسټ باندی د چین له لویی غوښتونکی او جگړه ماری رهبری سره خپل اړیکی پراخوی په دغه شان حالاتو او احوال کی باید بشریت

دبیخی له منځه وړلو د مخنوی لپاره د بریالیو غورځنگونو او انقلابونو ددفاع په غرض دسولی اونرقی د پلویانو لیکه لاپسی پراخه اولاپسی ټینگه شی ،موږ د دغه شان یو عمل د ضرورت اوگټورتیا په کادر کی چی دسولی لپاره دخلکو دنړیوال لومړنی پارلمان هرکلی کوو هغه ته په خاصه توگه ارزښت ورکوو •

زموږ سیمه دوسلو د زیاتوالی د خو کلن سیاست له عملونو او دامریکا له پوځی‌مستقیم شته والی وروسته په نړی کی د جنگ په‌یو ډیر کړکیچن او ډیر حساس مرکز بدله‌شویده اودغه ټکی د خلکو د سولی او امنیت لپاره مبارزه زموږ دپاملرنی په مرکز کـی دروی. زموږ د سیمی ملی آزادی بخښونکی او ټولنیز غورځنگونه ، مترقی دموکرات‌او انقلابی قوتونه نشی کولای څه‌په دغو خاوروکی داوسیدونکو خلکو د کار او ژوندډیرله پسی گټو په خاطر اوځه دنړی خوراامپریالیزم له ضرر څـــخه‌د هغوی د خپلواکی‌دموکراتیکو او مترقی نظامونو دراتلونکی مصونیت په خاطر د سولی په‌لاره کی مبارزی ته لږ ارزښت ورکوی•

د امریکا امپریا لیزم په وروستیو کلونوکی هڅه وکړه چی د پوځی اډو جوړول او پیاوړتیا دسیمه ییزو ټکوونکو ژاندار مو پوځی پیاوړتیا اوله فاسد و دیکتاتوری رژیمو نوسره مرسته زموږ دسیمی د پرگنو په نظرکی د بهر نیو موهومو خطر ونو په وړاندی‌په‌اصطلاح د خلکو دآزادی د ساتنی په توگه توجیه کړی •

خود امپریالیستی زراد خانو دغه له څانه جوړی شوی کیسی زموږ په هیواد کی ددغه جنایتکار په مستقیمو او څرگندو لاس‌وهنواود ایران د خلکو پر حاکمیت او د ځمکی پـــه تمامیت باندی د هغه په څرگندو اوبی‌شرمه تیریو سره لکه یخ دلمر په وړاندی او بـــه کیږی •

زموږ د سیمی خلك له ټولو وختو نو څخه زیات او په ډیره مستقیمه توگه خپل ځانونه له‌امپریالیزم او په تیره بیا د امریکا له امپر- یالیزم سره په سختی مبارزه کی ښکیـــــل وینی •

هغوی په دغو سختو دوروکی په‌هماغـــه مقیاس چی خپل اصیل بین المللی دوستان‌له دښمنانو څخه بیلوی‌اود سوسیا لیستی هیوادونو اوپه تیره بیا د شوروی سوسیا لیستی اتحاد په‌وجودکی رښتینی او وفا داره دوستی وینی په‌هماغه مقیاس زموږ په سیمو کی د امپریا- لیستی پوځی زیاتوالی په تیری کوونکو، ترقی ضد او دموکراتیك ضدهدفونو باندی پوهیږی•

دامپریالیزم لەناکامو نارو سورو سره سرەد
افغانستان خلك په خپل انقلاب‌کی او په تیره
بیا دهغه د بشپړ تیا په نوی پړاوکی پەسیمه
کی‌دسولی او آرامی پر خلاف هیڅ‌تکی اوهیڅ
گام نەوینی •

هغوی دوینی څښونکی امین د دیکتا توری
رژیم له منځه تلل په عین حال کی پەسیمه
کی‌دسولی د تامین په لاره کی یو گام بولی
اودسیمی د خلکو ترمنځ د دوامداری اوغوڅی
سولی اوتفاهم د تضمیـــن پـــه لاره کـــی د
خپل دولت جوړوونکو او منطقی پیشنهادونواو
نوښتونو ته زیاتی هیلی لری •

زموږ خلك عقیده لری چی موږ دهیڅ یود
هیواد خپلواکی، حاکمیت او امنیت‌نه‌تهدید ـ
وومو،زله سولی سره نه یوازی مینه لرو بلکی
هغی ته اړتیا لرو اودی ته سترگی په لاریو
چی زموږ گاونډیان په تیره بیا پاکستان او
ایران په سملاسی او مشخصه توگه همدغه
شان چلند غوره کړو او زموږ د خلکو تر منځ
دسوله ییز او آرامی را تلونکی له پاره داډه
تضمینونه وړاندی‌کړی•

موږ څرگند ووچی یوازی ددغه شان نوښت
اوددغسی خبروبه کار کی د ی چی کولای‌شو
زموږ له هیواد څخه دشوروی اتحـاد دپوځی
محدودو قطعاتو د بیرته تللو په گډون دعلاقی
وړتو لو مسالو په بارەکی خبری وکړ و او
هغوته د حل‌معقولی‌لاری‌ولټوو یوازی په همدغه
صورت کی دی چی موږ کولای شو موهومی او
ظاهری سـوله نه، بلکی ربښتینی سـوله‌پرسیمەی
باندی مسلطه کړو •

نن له هر وخت نه زیات د جگړی ضدمبارزه
اودخلکو امپریالیستی ضد مبارزه سره غوټـه
شویدی •

امپریالیزم نور نودتل لپاره د قدرت لەدریځ
څخه د خبرو کولوعینی‌زمینی‌له لاسه ورکړیدی
دسړی جگړی فضا ته بیرته ستنیدل نورلـه
سره تحقق نشی موندلی زموږ سیمه د سولی
پەمرکز باندی د بدلیدلولپاره پراخه امکانات
لری خو باید هوښیار او یو موټی او سواو په
گډوهلو څلو سرەامپریالیستی‌جگړه غوښتونکی
قوتونه نور هم گوښه کړو •

پریږدی د سولی لپاره د مبارزی په جریان
کی دټولو دموکراتیکو او د نړی د متر قـــی
قوتونو تر منځ ډیر ژوراوډیر پراخەیووالی

پیداشی • پریږی دی د امریکا امپریالیــزم زموږ د ټینګی ارادی په وړاندی وشرمیــږی سرټیټی شي او مجبورا زموږ له سیمی څخه د خپلو وژونکو وسلو لمنه ټوله کړی •

یوځل بیا د سولی په مقصد د خلکو د پارلمان کارونه ، د سوله غوښتنی دا لوړی ګام بریالی غواړم •

دافغانستان د خلك د دموکراتیك ګوند د مرکزی کمیټی عمومی منشی ، د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت د انقلابی شورا رئیس اوصدراعظم •

ببرك کارمل

# پیام ببرک کارمل به مناسبت عید سعید اضحی

۲۷ر۷ر۱۳۵۹

بسم الله الرحمن الرحیم

هموطنان عزیز ، شرافتمند ، آزاده ، سربلند و زحمتکش !

اجازه بدهید به مناسبت حلول عید سعید قربان از سر زمین دوستان تاریخی ، مطمئن وبااعتبار شما ، از کشور همسایهٔ بزرگ و مهمان نواز شما ، کشوردوست اتحاد شوروی سوسیالیستی از جانب خود وبه نمایندگی از همراهانم درین سفر کوتاه دوستانه صمیمانه ترین شاد باشها ودرود هارا توأم باعشق وشور بهوطنم به شما خواهران ، برادران ، پدران، مادران و فرزندان پاك نهاد ، مبارز و باشهامت کشور در هر جاییکه هستید ، تقدیم بدارم •

همچنان ایام فرخنده عید سعید اضحی رابه همه ملل مسلمان جهان وبرادران پشتون وبلوچ ماکه بهپیکارمقدس آزاد یبخش خود ادامه میدهند ، صمیمانه شاد باش میگویم•

تجلیل همه ساله از عید سعید اضحی ، سنت والای اسلامی مردم ما ومبنی الهامدرجهت فداکاری ودادن قربانی در راه خدا ، درراهوطن ودر راه دفاع از صلح وآرامش ، رفاه وسعادت وسر بلندی مردم میباشد •

درین روز های نشاط و صفاو صمیمیت به همه خانواده های داغدار وزجرديده کشور که عزیزان خودرا در نتیجهظلموو حشت باندیستها دزدان وقطاع الطریقان ، چپاولگرو اجیران ازدست دادهاند ازصمیم قلب وبااحساس عمیق احترام به خاطرهٔ همهٔ شهیدان راه آزادی ، سعادت ، آرامش وسر بلندی مردم ما، اظهار تسلیت مینمایم •

در اوضاع واحوالیکه ما زندگی میکنیم و کشور ما در معرض تجاوز غار تگرانهٔ نوکران ارتجاع و امپریالیزم قرار دارد ، منافع وطن وصلح وآرامش مردم ، از ما خواهان قربانی و فداکاری میباشد • مادرین پیکار برحقیکه درراه انجام مسوولیت های خویش بخاطر سعادت مردم مومن ، عدالت پسندو آزاده کشور به پیش می بریم ، یاری خداوند بزرگ ، پشتیبانی توده های زحمتکش و مردم صلحدوست جهان باماست •

روز های فرخنده عیدنه تنها پیام آور مفهوم عمیق وبزرگ دینی میباشد • بلکه از فضلیت انسانی مبنی بر دعوت همهٔ مسلمانان جهان به خلوص نیت ، صفای عقیدت،آشتی ،دوستی وهمبستگی برادرانه نیز برخورد ار میباشد، ولی دشمنان سوگند خوردهٔ اسلام و مسلمانان زحمتکش کشور ما مانع بر قراری صلح وبرادری ، آرامی وترقی مردم کشور ما میگردند •

مایقین کامل داریم که مردم زحمتکش و باشهامت ماز دشواری های کنونی، که در نتیجهٔ مداخلات مستقیم و غارتگرانه ارتجاعو

امپریالیزم بهمکاری‌خیانت پیشه گان رهبری کنونی چین ایجاد گردیده ، پیروز مندانه بدر خواهند آمدو به مداخلات مستقیم وبیشرمانه آنان مجمله مداخلات مسلحانه درامور داخلی ماکه به شکل جنگ اعلان‌ناشده‌علیه افغانستان آزاد و مستقل ، قهرمان وانقلابی براه افتاده وصلح وامنیت مردم مارا مختل میسازد ، پایان خواهد بخشید .

نیروهای‌صهیونیستی‌وامپریالیستی درزدوبند خاینانه باسادات ودر زیرپوشش معاهدهٔ ننگین کمپ دیو ید به اشغال سر زمینهای عربی وتجاوزات مسلحانه وسیع علیه خلقهای عرب فلسطین ومردم لبنان ادامه میدهند .

ولی ما یقین داریم که مبارزات‌برحـــق وعادلانه مسلمانان‌جهان‌بخصوص مبارزهٔ عادلانهٔ مردم بلا کشیدهٔ فلسطین و خلـــق لبنان علیه ارتجاع عرب ، صهیونیزم اسرائیل و امپریالیزم امریکا به پیروزی میرسد .

بخصوص درین ایام فرخندهٔ عیدآنچه مایهٔ تاسف فراوان ما میگردد ، جنگ برادرکشانه است که بین دو کشور مسلمان همسایه یعنی ایران وعراق برای افتاده است .

ماعقیده راسخ داریم که این جنگ نه‌به نفع توده های مردم ایران ونه به نفع مردم‌عراق میباشد ، این جنگ‌جنگیست که زمینه های‌آن ذریعه امپریالیزم امریکا مهیا گردیده وآتش خونین آنرا امپریالیزم امریکا دامن میزند .

این جنگ باید هر چه زود تر پایان یابد، درین جنگ‌خانما نسوزبرادران مسلمان‌یکدیگر رابه قتل میرسانند ولی صهیونیزم ، امپریالیزم وعظمت طلبان چینی بخاطر آن شادی میکنند، مردم افغانستان بانگرانی ناظرادامهٔ این جنگ اندو خواهان حل مسالمت آمیز بحران کنونی بین ایران وعراق میباشند .

امپریالیزم در تلاش است که منطقه خلیج رابه یك لانهٔ خطرناك جنگ‌وآتش افروزی‌مبدل سازد تابدین وسیله سیادت آزمندانه نفتی خودرا بر کشور های منطقه تحمیل نماید .

ولی ما اعتقاد راسخ داریم که نیروهایی صلحدوست جهـــان بـــخصوص اردو گاه سوسیالیستی ودر راس کشور کبیر شوراها بانیروی عظیم خویش قادراند به‌تمایلات جنگ طلبانه محافل امپریالیستی ، لگام بزنند

درفرجام یکباردیگر این ایام فرخنده رابه همه مردم شریف ، آزاده وزحمتکش افغانستان وکافهٔ مسلمانان زحمتکش جهان مبارکباد گفته سعادت و خوشبختی ، ترقی ورفاه ، صلح و آرامش وکار پر ثمر وخستگی ناپذیر شانرا درجهت اعماریك زندگی آبادومترقی، شگوفان وسربلندتمنادارم، آرزومیکنم مردم زجرکشیده وزحمتکش مادر جهت جبران عقب ماندگی های درد ناك ناشی از دوره های سیاه گذشته در تحت درفش پرافتخار انقلاب ملی ودموکراتیك ثور وبخصوص مرحلهٔ نوین تکاملی آن‌بسوی پیروزی های چشمگیرو قلل شامخ افتخارات انسانی به پیش روند .

ومن الله توفیق

# دافغانستان دموکراتیک جمهوریت دنړۍ په هره برخه کي هرډول تو پیرغندي

دملګرو ملتو د موسسي د جوړیدو د پنځه دیرشمي کالیزي له امله د افغانستان د خلک ددموکراتیک ګوند د مرکزي کمیټي د عمومي منشي د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت د انقلابي شورا درئیس او صدراعظم ببرک کارمل پیغام :

۱ر۸ر۱۳۵۹

پدي وخت کي چي په ټوله نړۍ کي د ملګرو ملتو د سازمان د جوړیدو پنځه دیرشمه کالیزه نمانځل کیږي خوشحاله یم د خپل ځان لخوا د مرکزي کمیټي، د افغانستان د دیمو کراتیک جمهوریت د انقلابي شورا او دوزیرانود شورا او ټولو زیارایستونکو خلکو په نمایندګي د نړۍ ټولو زیارکښو او ټولو سوله د وستو او مترقي غواکونو ته په نړۍ کي دسولي او ټولنیزي ترقي په هیله خپلي دزړه د کومي مبارکي مراتب وړاندي کړم.

دافغانستان دمو کراتیک جمهوریت د ملګروملتو منشور ته چي دهغه لوړ هدفونه د بین‌المللي سولي اوامنیت ، د سوکالي او ټولنیز عدالت تامین او د بشر د حقوقو او دملتونو خپلواکي او ملي حاکمیت تامین دي په‌درنده سترګه ګوري او هغه د یوي آزادي اوله‌هر ډول‌ظلم، ستم او استثمار څخه د خلاصي‌دنیا دجوړیدو لپاره دسوله دوستو خلکو او هیوادو دهلو ځلو دسمبالتیا ډیره ښه وسیله بولي.

دملګرو ملتو موسسي چي د دویمي نړیوالي جګړي په پای او په فاشیزم او ملیتاریزم باندي دسولي د ځواکونو د غوڅ بري په نتیجه کي‌جوړه شوه د یوي بلي نړیوالي جګړي له مصیبت څخه چي د نړۍ په‌خلکو باندي بې‌زیات مصیبتونه وزغمي دراتلونکو نسلونو دژغور - لولپاره خپلو هلو ځلو ته دوام ورکړیدی.

امپریالیزم او په هغه پوري تړلي جګړه غوښتونکي ټولني دوسلودزوروآزمویلو په پیل

کولو اوددغه شان زورازموینود زیاتوالی او دوام لپاره د بی وسلی کولو د هدفونو دتامین دپرمختیا یی هیوادو د اقتصادی ودی، دبین‌المللی اقتصادی همکاریو د پراختیا او دنوی بین المللی اقتصادی نظم درامینځته کیدو په لاره کی ستر خنډونه پیدا کوی ·

د افغانستان دموکراتیک جمهوریت دسولی اوامنیت د غوښی دفاع ،د دیتانت د سیاست دننګی ، د استعمار ،امپریا لیزم ،اپارتاید نژادی توپیر پر خلاف مبارزه کی دآسیا افریقا، او لاتینی امریکا د آزادی بخښونکو غورځنګونو د ملاتړ، په نړی کی دملیونونو انسانانو د انکارنه د منونکی حق د تامین اود سرنوشت د ټاکلو لپاره تر استعمار لاندی خلکو د مبارزی د ننګی پر له پسی سیاست تعقیبوی ،اود افغانستان‌ددموکراتیک جمهوریت دغه سیاست په داګه دملګروملتو دمنشور په هدفونو اواصولوبانذی دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دولاړپاتی کیدونکارندوی دی ·

تراستعمار لاندی خلکو د ورځ په ورځ‌زیاتیدونکو مبارزوسره‌سره اوس هم‌په میلیونونو انسانان په اسارت کی شپی ورځی تیروی·

هیله من یم چی‌داستعمارد وروستیو بقایاوو دله مینځه وړلوپه‌باب دملګرو ملتو دموسسی تصمیمونه اجرا شی او هغه‌ملتونه چی تر اوسه پوری داستعمار تر جغ لاندی ژوند کوی خپله خپلواکی تر لاسه کړی ·

دافغانستان دموکراتیک جمهوریت د نړی په‌هره برخه کی هر ډول توپیر غندی اود استعمار، راسیزم او اپارتاید دبیخی له مینځه وړلوپه مبارزه کی به‌په هره بڼه‌چی وی له‌هغی دیسمسی سره هلی ځلی وکړی ·

یوځل بیا د دغی مهمی ورځی له امله دنړی ټولو خلکو او سوله دوستو،او مترقی قوتونوته خپلی مبارکی مراتب څرګندوم او په نړی کی دسولی ، دموکراسی او ټولنیزی ترقی د بریالیتوب له پاره د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت د خلکو او حکومت صمیمانه هیلی تکراروم ·

# جاودان باد رسالت بشردوستی ونوع پروری سره میاشتها

پیام ببرک کارمل منشی عمومی کمیته مرکزی حزب دموکراتیک خلق افغانستان رئیس شورای انقلابی و صدراعظم جمهوری دمــوکراتیک افغانستان وحامی جمعیت افغانی سره میاشت بمناسبت هفته مخصوص سره میاشت.

۱۳۹۵ر۹ر۲٤

با ایجاد تغییرات وتحولات بنیادی درشئون اقتصادی ، اجتماعی، فرهنگی وسیاسی کشورما که در اثــــر پیروزی انقلاب ظفرنمون ثور وبخصوص مرحلهٔ نوین تکاملی آن به میان آمد جمعیت افغانی سره میاشت نیز پابه پای آرمانهای والای انقلاب ثور قادر گردیده است که علی الرغم دوران رژیم های فرتوت گذشته کارهای عمده وثمربخش رادر پیشبرد رسالت بزرگ ملی وانسانی خویش به انجام رساند.

درین تطبیق اهداف بشردوستانه ایــــن سازمان خیریه جنبش وحرکت بیسابقه مشهود میباشد • که اثرات آنرادر وصول کمك های بیطرفانه وداوطلبانه سره میاشت در مناطـق آسیب‌زده بەنیکو یی‌میتوان ملا حظه کرد .

سره میاشت یاد گار عظمت وبزرگی رادر مرد نیکواندیش ونوع پروریست بنام هانری دونانت که به هنگام مشاهدهٔ اوضاع دهشتناك جنگ سلفر ینودر سال (۱۸۵۹) میلادی که آنرا هم امپریالیزم درنیمه دوم قرن نزدهم راه انداخته بود احساسش برانگیخت وندای انسانی سرداد که :

ای مردم ! دست از جنگ بردارید !زیرا ماهمه برادریم! این ندا باروحیه و خواست فطری سره میاشت مطابقت دارد وتمام مردم جهان را دعوت مینمایدکه بایکدیگر در فضای همکاری ، دوستی ، برادری وصلــح زیست نمایند .زیرا که دشمنی ، جنگ و آدمکشــی مخالف روحیه سره میاشت میباشد . من بنوبهٔ خود تمام مردمان جهان خاصتا مردم مسلمان وقهرمان افغانستان را دعوت مینمایم که تحت تاثیری نیروی جنگ طلب امپریالیزم نروند ومانند سایر مردمان کشور های صلحخواه آدمکشی ، جنگ ومسلمان کشی راز میان برادرند ودر فضای آرام وصلح آمیز برادرانه

بزندگی خویش بذل توجه نمایند وبرای آبادی وطن کار مثمر نمایند .

اکنون که‌در (۱۲۵) کشور جهان جمعیت های ملی وبین المللی بنامهای سره میاشت هلال احمر ، صلیب سرخ وشیر خورشیدسرخ فعالیت میکنند ، مساعی آنها بطور کلی متوجه تطبیق مرامهای انسانی سره میاشت هامبنی برانجام خد مات نیکوکارانه صحی و معاونت به آسیب دیدگان حوادث طبیعی وغیر طبیعی واستفاده از نیروی داوطلبانه وآماده ساختن نوع پسندان در خدمات خیریه امدادی ،صحی وفرهنگی میباشد که این خدمات را صرف‌نظر از ملحوظات سیاسی ، مذهبی، ملی، نژادی واجتماعی ایفا می‌نمایند •

جمعیت افغانی سره میاشت چنانکه گفته آمدیم در طول سالهای‌تسلط حکومات ارتجاعی نتوانسته است خدمات خودرا در سطح ملی وجهانی گسترش بدهد • به یقین که‌در فروغ شرایط نوین انقلابی جامعه ماحیثیت و مقام واعتبار خودرا متناسب بارزشهای وضع‌جدید در کشور کسب کرده است که باعملی کردن هدف های نیکوکارانه هیچگونه مساعی خودرا در رفع مشکلات و پرابلم های بینوایان و مستمندان دریغ نمی نماید که امداد های‌نقدی وجنسی جمعیت بشمول پنج هزار تن گندم ، آرد ،روغن وغیره در طول ششماه اخیر که معادل اضافه از هشتادمیلیون افغانی میشود مظهری ازاین اقدامات نیکوکارانه در خدمت مستحقان وآسیب زدگان محسوب میگردد .

درین موقع که هفته مخصوص سره میاشت تجلیل میشود از صمیم قلب آرزومندیم که‌کار کنان این جمعیت انسانی باعلاقه مندی هرچه تمامتر در جهت اجرای مقاصد عالیهٔ آن‌همت گمارند وازینکه شالوده این کـــانون خیریه برمبنای خدمات رضا کارانه ومجانی پی‌ریزی شده‌است متیقن هستیم که‌مردم شریف متدین ومسلمان مادر مقیاس وسیعتر و موثر تری در تحقق هدف های اخلاقی وانسانی آن‌گام برمیدارند واز هیچگونه کمك مادی و معنوی باجمعیت ملی افغانی سره میاشت ، دریـغ نمی‌ورزند •

(جاودان باد رسالت بشردوستی ونوعپروری سرمیاشت ها •)

تاهنگامیکه حقوق حقه مردم فلسطین کاملاً مدنظر گرفته نشود هر گونه راه حل در شرق میانه یک امر دشوار است

**پیام ببرک کارمل منشی عمومی کمیته مرکزی حزب دموکراتیک خلق افغانستان، رئیس شورای انقلابی و صدراعظم جمهوری دموکراتیک افغانستان به مناسبت تجلیل روز ۲۹ نوامبر یا روز بین‌المللی همبستگی با داعیه مردم قهرمان فلسطین :**

**۸ر۹ر۱۳۵۹**

تمام بشریت مترقی وصلحدوست، تاریخ بیست ونهم نوامبر را بحیث روزهمبستگی بین‌المللی با مردم قهرمان فلسطین تجلیل می نمایند.

فرصت را مغتنم شمرده بتایید موقف و حمایت بیدریغ مردم وحکومت جمهوری دموکراتیک افغانستان در پشتیبانی از مبارزات مردم قهرمان فلسطین، تحت زعامت سازمان رهایی بخش فلسطین بخاطر استرداد حقوق حقه شان می‌پردازم ،حمایت وهمبستگی جهانشمول ازمبارزات مستدام مردم فلسطین توسط دول ونیروهای صلحدوست و مترقی موید حقانیت مبارزه فلسطینیها میباشد .

تاهنگامیکه حقوق حقه مردم فلسطین کاملا مدنظر گرفته نشود هر گونه راه حل در شرق میانه یك امر دشوار است .

حکومت جمهوری دموکراتیك افغانستان عقیده میداشت که یك صلح عادلانه ودوامداردر شرق میانه صرف باخروج کامل ، فوری وبی قیدو شرط نیروهای نظامی از قلمرو های اشغالی عربی بشمول بیت المقدس میسر شده میتواند.

تاسیس یك دولت مستقل از حقوق ملی وانفکاك ناپذیر مردم فلسطین تحت رهبری سازمان

آزاد ببخش تلقی میگردد وباید در هر گونه مذاکرات مربوط به یافتن راه حل پرابلم‌شرق میانه بحیث یگانه نماینده واقعی مردم عرب فلسطین اشتراك ورزد •

باتجدید تاییدوپشتیبانی ازحقوق حقه برادران فلسطین اطمینان داریم که داعیه شان بزودی پیروز خواهد شد •

# اصول اساسی جمهوری دموکراتیک افغانستان حمایت از اعلامیه جهانی حقوق بشر را به بانگ رسا اعلام نمود

پیام ببرک کارمل منشی عمومی کمیته‌مرکزی‌حزب دموکراتیک خلق افغانستان،رئیس‌شورای انقلابی وصدراعظم جمهوری دموکراتیک افغـانستان به‌مناسبت سی‌ودومین سال تصو یب اعلامیه جهانی حقوق بشر : ۱۹ر۹ر۱۳۵۹

مسرت دارم درین فرصتیکه سی‌و دومین سالگرد تصویب اعلامیه جهانی حقوق بشر در سراسر جهان تجلیل میگردد، پشتیبانی عمیق وکامل وعقیده راسخ وصمیمانه‌دولت و خلق افغانستان رابه پرنسیپ هاواساسات مندرج اعلامیه جهانی حقوق بشرابراز وتایید نمایم .

سی‌ودوسال قبل مجمع عمومی سازمان‌ملل متحد اعلامیه ای رابه صفت یاسند تاریخـــی به تصو یب رسانید که بنام اعلامیه جهانی حقوق بشریاد گردید ه ودرآن‌معیار وارزشهای انسان برمبنای احترام به حقوق بشری ، کرامت انسانی وتامین‌عدالت وصلح درجهان انعکاس یافته است .

این اعلامیه جهانی به تعقیب تلاشهای‌پیگیر ظفرمند و تاریخی در راه پیروزی نیروهای صلحدوست و ترقی خواه جهان بردشمنان حقوق انسان یعنی‌فاشیزم‌وحلقه‌های‌استثمارگر وجنگ طلب از طرف‌اسامبله عمومی ملل‌متحد بعداز تاسیس آن سازمان جهانی به تصویب رسید که در آن جامعه بین المللی مسوولیت حمایت و تعقیب حقوق بشر را بحیث‌یک‌وجیبه دایمی قبول نمود .

انقلاب شکوهمند ثور ۱۳۵۷ افغانستان زندگی نوینی رااز لحاظ سیاسی، اقتصادی واجتماعی بنیاد گذاشت وخصوصاً مرحله‌نوین تکاملی آن بعدازقیام ششم جدی که تاریـــخ اعلام نجات خلـــق افغانستان از سیطره، ظلم ،بیعدلتی ، استبداد وتخطی های صریح از حقوق اساسی بشری شمـــرده میشود ، شرایط و مقدمات لازم را برای تامین همه حقوق اساسی مردم مهیا ساخت .

انحرافی که در نتیجه فعالیت های عناصر فاشیستی باندامین برضد انقلاب ثور وحقوق بشـــر صـــو ر ت گـــر فتـه بـــود . پیروزی مرحله نویـــن انقـلاب چـاره جویی ومداواشده اولین واز مرحله تکاملی انقلاب به طرفداری از حقوق بشر بود .

جای مسرت است که خلق زحمتکش‌افغانـ نستان بااین پیروزی های‌تاریخی خودبارهبری حزب دموکراتیک خلـــق افغانستان ، حزب

طبقه کارگر وتمام زحمتکشان کشور کاخ ظلم ستم، استبداد وآدمکشی وخونریزی راسرنگون کرده ودر پروسهٔ ایجاد یك جامعه مرفه وفاقد استثمار فردازفرد باروحیهانقلابی تمامنیروهای خودرا بکارانداخته پیروزمند وپرافتخار پیش میرود .

دربدوامر بعداز قیام ششم جدی هزاران نفر از جوانان ، دانشمندان ، روشن فکران، زحمتکشان ، مردان ، زنانوحتیاطفال معصوم وبیگناه که در اثر جنایات ظلم و ستمگری حفیظ الله امین وباند جنایتکار آن در سلول های زندان وعقب میلههای آهنین انداختهشده بودند نجات یافته ورها گردیدند .

اصول اساسی جمهوری دموکراتیك افغانستان حمایت ازاعلامیه جهانی حقوق بشر را به بانگ رسا اعلام نموده وآنرا صریحوروشن وبا قوت تایید میکند . بتاریخ چارم قوس ۱۳۵۹ مطابق ۲۵ دسامبر ۱۹۸۰ طی جلسه مشترك بیروی سیاسی و هیات رئیسه شورای انقلابی جمهوری دموکراتیك افغانستان مصوبه ای مبنی بر تحکیم قانونیت انقلابی صادر گردیده است که باساس آن حقوق وآزادی های فردی بیش از پیش تضمین وتامین میگردد .

امروز خلق نجیب افغانستان در پر تونظام دموکراتیك ومردمی خویش رامزندگی پرسعادت ومطمئن رابه پیش گرفته اند نظامیکه احترام واقعی رابه اعلامیه جهانی حقوق بشر ومنشور ملل متحد، تامین تساوی حقوق مردوزن درتمام ساحات سیاسی ، اقتصادی،اجتماعی وکلتوری وتامین آزادیهای فردی دموکراتیك رادر عمل رعایت کرده واز جمله خطوط اساسی وظایف انقلابی خود میشمارد .

افغانستان بحیث عضوفعال سازمان ملل متحد به اصول مندرجه در منشور این سازمان و اعلامیه جهانی حقوق بشر عمیقاً وفادار است در فعالیت های که بمنظور تامین صلح جهانی وتحقق پرنسیپ های حقوق بشر صورت میگیرد سهم فعال دارد و همیشه از حقوق مردمان زیر ستم ومبارزه بخاطر محو استثمار و استعمار وشیوه های نوآن اپارتاید واشکال مختلف تبعیض نژادی بشمول صهیونیزم پشتیبانی کامل نموده و مینماید .

باوجود یکه سیودو سال از اعلامیه جهانی حقوق بشر میگذرد مگر باتاسف دیده میشود کهدریکعده ازکشورهایجهان ومناطق هنوزهم توده هایستمدیدهورنجکش تحت ظلم واستثمار سطله اجنبی حیاتبسر بردهواز حقوق انسانی خویش محروم اند، افغانستان انقلابی ومترقی همیشه همرزموهمسنگرهمهنیروهای ترقیخواه وصلحجوی جهان خواهدماند و برای تا مین حقوق بشرونجات بشریتازچنگالظلم وبیداد-گریهایك جا مبارزه خواهد کرد .

بااستفاده ازین فرصتیکباردیگر همبستگی وتایید عمیق حکومت و خلق زحمتکش افغانستان را نسبت باصول اعلامیه جهانی حقوق بشر ابراز نموده، جهان فارغازظلم وستم ، نابرابر یهاو جنگوخونریزی رابههمه بشریت خواستارم .

# دفلسطین دخلکو دانقلاب دشپاړسمې کالیزې له امله دببرک کارمل پیغام

**دفلسطین دخلکو دانقلاب دشپاړسمې کالیزې له امله دافغانستان دخلك ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټې د عمومی منشـی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم ببرك کارمل پیغام •**

دفلسطین دانقلابی پوځ لوی قوماندان ، دفلسطین دآزادی غوښتونکی سازمان داجراییه کمیټې رئیس یاسرعرفات .

گران ملگری !

دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند دمرکزی کمیټې دافغانستان ددموکراتیك جمهوری حکومت او دافغانستان دآزاد واو انقلابی خلکو پـــه نمایندگی دفلسطین دملی‌ورځی له امله دخپلو صمیمانه مبار کیو مراتب تاسواو ستاسو لهـ لاری دفلسطین دآزادی غوښتونکی سازمان ټولو مبارزانواو دفلسطین مبارزو او قهرمانو خلکو ته ښرگند وم •

دافغانستان اوفلسطین دخلکوترمنځ وروری او انقلابی پیوستون‌لرغونی‌تاریخی ریښې لری، زموږ خلك تل دفلسطین دقهرمانو خلکو په ښنگ کی ولاړدی،دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند، زموږ دهیواد دکار گری طبقی اوټولو زیارایستو نکو گوند، دخپل موجودیت لههماغه پیل ښخه تل دفلسطین دعربو خلکو دبر حقی داعیی دفاع کړیده •

دامپریالیزم او صهیونیزم پر ضد په گډه مبارزه کی دافغانستان او فلسطین دخلکو ترمنځ انقلابی پیوستون ، دثور انقلاب له بری اوپه تیره بیادهغه له بشپړتیایی نوی پړاو وروسته چی د افغانستان دخلك دموکراتیك گوند په مشری وشو ډیره پراخه هراړ خیزه اولا مشخصه لمنه غوره کړی او زیاته کیفی شتمنی یی ترلاسه کړیده •

زموږ دخلکو ترمنځ ، دافغا نستان دخلك دموکراتیك گونداو دفلسطین‌دآزادی غوښتونکی سازمان ترمینځ پیوستون‌کوم ناڅاپی کارنه‌دی، بلکی دامپریالیزم او دصهیونیزم او ملیتاریزم په گډون دهغه دټولو تیری کوونکو مظاهرو پرضد دگډی مبارزی په جریان کی عینی گډ پیوندونه ددغه پیوستون اساسی عامل دی، پهداسی حال‌کی دفلسطین دخلکودروا حقوقو دژوندی کولوله پاره هغوی دامپریالیستی ضد او صهیونیستی ضد عادلانه او قهرمانانه مبارزو سره‌دافغا نستان دگوند ، حکومت او خلکو په مبارزه غوښتونکی اوغوځ پیوستون باندی‌پوځل بیاټینگار کوو ، کلکه عقیده لرو چی بری دفلسطین دخلکو په برخه دی •

ځکه دخپلواکی او آزادی په لاره کی دهغوی مبارزه عادلانه او برحقه مبارزه ده ، موږعقیده

لروچی دفلسطین مساله دمنځنی ختیځ د کشالو مرکزی مساله تشکیلوی او کوم شك نشته چی دامپریالیزم اوصهیونیزم کرغیړن پلانونه او دسیسی دعربو خلکو او په تیره بیا دفلسطین دقهرمانو خلکو دآزادی غوښتونکی لوی غږ زندی کولوته متوجه دی چی ددغوغیر انسانی او عربی ضد توطیو په وړاندی یوازی کیدای شی دعمل دیووالی په ارادی په ټینګه او یوموټی ټول آزادی غوښتونکی دموکراتیك او سوله دوست قوتونه بریالی شی ٠

موږ عقیده لرو چی دکمپ دیوید خاینانه ترون نه‌یوازی یوداسی خنجردی چی‌په‌ناځوانۍ توګه یی له شا څخه‌په‌عربوخلکو ګوزار کړیدی بلکی دا مپریالیزم په واك کی‌یی نوی لـه‌تیری نه‌ډکی لاری چاری او امکانات ورکړیدی چی په نتیجه‌کی په منځنی‌ختیځ دګرګیچ دخطر دزیاتوالی او دټینګښت دنشتوالی اودجنګ ددوام سبب شویدی ٠

داسرائیلو په پایتخت باندی دبیت المقدس توجیه نه منونکی اولمسوونکی تبدیل اودلبنان په‌جنوب باندی داسرائیلو دپوځی بریدونوزوی څپه ددغه خاینانه تړون مستقیمی نتیجی او داسرائیلو د پراختیا غــوښتنی او د نړیوال امپریالیزم دجګړی غوښتنی په لاره کی یو بل مهم ګام دی ٠

موږخوخو خله‌ویلی‌دی‌چی دفلسطین آزادی غوښتونکی سازمان دفلسطین دخلکو یوازینی قانونی نماینده دی او لکه څنګه چی دتیرو ـ څو لسیزو تاریخ ښودلی چی دفلسطین دخلکو ملی‌هویت‌باندی‌په‌سترګو پټولودغه دبلامنازع استازی یعنی د فلسطین دآزادی غوښتونکی سازمان له ګډون څخه پر ته په فلسطین پوری هیڅ مربوطه مساله حل کیدلای نه شی او نه کیدلای چی په‌منځنی ختیځ‌کی دسولی‌اوامنیت خبری مطرح شی ٠

موږ پداسی حال کی چی دعربو خلکو اوپه تیره بیا فلسطین دقهرمانانو خلکو په څنګ کی ولاړیوعقیده لرو چی دمنځنی ختیځ دټولو خلکو امنیت دفلسطین درواحقوقو په اعادی‌له هغو څخه دفلسطین دخپلواك دولت په جوړیدو پوری مربوط دی ٠

دنړی په دی سیمه کی داوسنیو کشالو حل پداسی شرایطو کی تامینیږی چی داسرائیلو پوځی قوتونه دملګرو ملتو دمصوبو اودخلکو دسرنوشت‌دټاکلو دحق‌پربنسټ‌دعربو نیول‌شوی ځمکی خوشی‌کړی اودنړی په‌دی سیمه‌کی تیری پای ته ورسوی ٠

ګران ملګری تاسوته ډاډ در کوم چی دافغانستان خپلواك‌اومبارزخلك دافغانستان دخلك دموکراتیك‌ګوند‌په‌مشری‌دخپلوفلسطینی‌وروڼو په څنګ کی ولاړدی‌اودغه پیوستون به‌په‌راتلونکی هم دوام او تکامل وکړی ٠

پریږدی چی دفلسطین دانقلاب شپ‌اړسمه کالیزه دفلسطین له زړه وروراو قهرمانانو خلکو سره دنړی دټولو دخپلواکی اوسوله دوستو خلکو دیپوستون دزیات ټینګښت اولازیاتی پراختیا له پاره یو فرصت وی ٠

«ببرك‌کارمل دافغانستان دخلك ددموکراتیك ګوند دمرکزی کمیټی عمومی منشی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دانقلابی‌شورا رئیس‌او او صدراعظم ٠»

# میافقیرالله زموږ له هغو عرفاني څېرو څخه دي چې دخپل ژوند په اوږدو کې ډېر کمنور او ارزښتناک کارونه کړي

**دمیا فقیرالله جلال آبادی علیه الرحمه دیادونی دغونډی دپرانستلو له امله دافغانستان دخلك ددموکراتیك گوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت دانقلابی شورا درئیس او صدراعظم ببرك کارمل پیغام :** ۲۹ر۱۱ر۱۳۵۹

بسم اللهالرحمن الرحیم

خوښ یم چی دا پیغام دافغانستان دیوی هغی اعلمی ادبی او روحانی خیری دنما نځنیډ غونډی دپرانستلو دمراسمو له امله چــــی کتابونه او رسالی دهغه دپراخی پوهی څرګندوی اودده دپاك زړه ښکارندوی دی وړاندی کوم.

دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت داساسی اصولو پر بنسټ زموږ دتاریخ دعلمی اوروحانی شخصیتونو قدر دانی زموږ دانقلابی دولـــت دفرهنګی سیاست له مظاهرو څخه ګڼل کیږی تاریخی ، فرهنګی ویاړ نو ستاینه او نمانځنه اودټولنی معنوی ستنوته درناوی اودپاکلمنی آزادفکر کولو اونورو ښو خویونو دربښتینــو سرچینو پیژندنه ددی خاوری دخلکو اخلاقی خصوصیتو نه دی •

دافغانستان دموکراتیك جمهوری دولت لکه څنګه چی هیواد پالو روحانیو نواوپه پراخه پلاروطنه ملی جبهه کی دهغوی ګډون ته په درنه سترګه ګوری دتیر و پیړیو لاربښوونکـــو او روحانیونوته هم قدر ورکوی . د میافقیرالله جلال آبادی علیه الرحمه دنما نځنی دغونډی جوړ ول ددولت ددغو ارزښت ورکولو یوه ښه نمونه کیدلای شی •

میافقیر الله زموږ له هغو عرفانی خیرو څخه دی چی دخپل ګټورژوندپه اوږدوکی یی دعرفانی ارزښتناکومطالبو دعلمی څیړنو اوبیان په کارکی سره او دکتنی وړ برخه لرلی ده •

دمیافقیر الله جلال آبادی دنما نځنی غونډی چی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دوزیرانود شورادا ۱۳۵۹ کال داسد دمیاشتی دیو لسمی نیټی دمصوبی له مخی ددغه مشهور عارف نه مړینی دوه سوه لمریز کاله وروسته نمانځل

کیږی زموږ پوهان دی ته اړکړل چی له یوی خوا دهغه دخوکتابونو او رسالو په چاپو لو لاس پوری کړی اوله بلی خواد هغه دژوند آثار واو افکار په باره کی په څیړنولاس پوری کړی ددغو تحقیقاتو اوڅیړنو مجموعه‌بەدمقالو او رسالو په بڼه وړاندی شی . سربیره پردی دهیواد دپوهانو اولیکوالو له خوابه ددغـــی پیښی له امله څونورکتابونه هم دلوستنونکو په واك کی کیښودل شی .

له هغو څیړ نواو تحقیقاتو څخه چی سرته رسیدلی دی معلو میږی چی میافقیرالله ددرانیږ دوخت له عدالتخوښو ونکواو اصلاح‌غوښتونکو شخصیتونو څخه دی هغه په خپلو آثار وکی په ډاگه اوروښا نه توگه دحاکمانو اود هغوی دگوډا گیانو ظلمونه غندلی دی اوله مذهبی لمسونواوبی لاریو سره یی مخالفت کړیدی .

دپوها نو له څیړ نو څخه معلومیږی چی میافقیرالله خپل ژوند د ارشاد په غـوښتنه دپوهی په زده کړه او دخپل وخت دکتابونو او رسالو په څیړ نه تیر کړی اوبیایی په خپله دپیروانواوزده‌کوونکو دلارښوونی په کار او د کتابونو او رسالوپه لیکلوپیل کړیدی . ده پخپلولیکنوکی پرهغوکسانو سخت وردانگلی دی چی دپوهی له زده کړی پرته پەدی لاره‌کی له زیارایستنی پر ته یوازی دپیرزاده کی‌او وراثت په نوم دمسلمانانو دلار ښوونی دعوا کوی .

په همدی ډول زموږ دڅیړ ونکو څیړنی ښیی چی میافقیرالله جلال آبادی دخوانانو ښوونو او روزنی ته ډیر اهمیت ورکاوه او ښوونه او روزنه یی په افغاني ټولنه کی یوه اړینه ستونزه گڼله ، جمهوریت انقلابی شورا رئیس او صدراعظم

اولوست تەزیات اهمیتورکاوه او ربښتیا والی، سموالی او پاکــوالی یی د سړیتوب د لوړتیا او بشپړتیا ستر شــرط بالــه ، میافقیرالله چاه طلبی اوپانگی ټولو لو څخه خلاص وو او خپلومخلصانواوزده‌کوونکوته‌یی دعلومودترلاسه کولو دباطن دپاکوالی اودکوښښ‌اوسر ښندنی په‌کارکی لارښو ونه کوله .

هیله‌من‌یم‌دغه علمی‌غونډچی دادی په‌کابل‌کی جوړ یږی دهیواد ددغه عارف دآثار وڅیړولو له‌پاره لازیات امکانات برابر کړی او دهغه داحوال او افکار وپه برخه کی دزیاتو څیړنو دروازی پرانیزی بیاهم هیله من یم چی ددغه ستر علمی او روحانی میړه او زموږ دپرتمین تاریخ دنورو سترومیړنوپه‌باره کی گټور اووږ پرمختگونه وشی .

دافغانستان دعلومو اکادیمی ،کابل پوهنتون داطلاعاتو او کلتور دوزارت دکلتور او هنر ریاست، دیونسکوملی‌کمیسیون اوهغوکورنیو اوبهرنیوپوهانوته‌چی پەدی سترسیمینارکی - یی فعاله برخه اخیستی ده څلانده بریالیتوبونه غواړم .

روښانه‌دی‌وی دپوهی ډیوه، ټینگه دی وی دروحانیونواوپوهانوپه فعالی برخی اخیستنی سره پلاروطنه ملی جبهه .

«ببرك کارمل»

دافغانستان دخلك دموكراتيك گوند دمرکزی کمیتی عمومی منشی دافغانستان دموکراتیك

تاریخی ګړ دو دونه ،ټو لنیز ګړ دو دو نـه او داسی نور . او سنی پښتو له جغرافیایی پلوه په درولو یوګړ دوودویشل کیږی :

۱ـ کند هاری یا لویدیز ګړدود .

۲ـ ننګر هاری یا ختیز ګړ دود .

۳ـ منځنی ګړدود .

ددود له مخی کند هاری ګړ دود ته کندهاری پښتو ، ننګر هاری ګړ دو دته ننګر هـاری پښتو او منځنی ګړ دود ته منځنی پښتـــو هم وایو .

کوم بریدو نه چی دغه دری ګو نـــی پښتو ګړ دو دو نه سره بیلوی هغه ګړنی ، صوتی ، ګـرامری او وییز یا لیـکز یکـــی (لغوی) تو پیرو نه دی .

۱ـ په کندهار دود یاکندهاری پښتو کی له کند هاری پر ته نوری لو ید یـــزی او سویل لو یدیزی سیمی هم را ځــــــی چی دبادغیس له بالا مرغات ، غور ماچ ،دغور نیاز کلا ، او دهرات له کهسان څخه را پیل کیږی او دزابل تر جلد که رارسی او زیاتره په سږ بنی او بیا په غرغښی او بیټنی ټبرونو اړه لری لکه بارکزی ، الکوزی ،سا کــــزی نورزی ، اڅکزی ،کاکړ ، ترین ، پریـــځ ، بابړ .... دغه راز په یوځه تو پیر په دغه ډله کی دسو یل وزیری ، مسیدی او بیټنـــی او دختیځ دخټکو پښتو هم راځی .

۲ـ منځنی ګړ دودی ډله یا پښتو چـــی له جلد که را پیل کیږی او تردرو نټی پوری اوږدوالی مومی ، دزابل پکتیا ، غز نـــی ، وردګو ، میدان ، لو ګر ، کابل ، پروا ن ، کاپیسا ، لغمان ، او یو څه دننګر هار پـــه متوزیو (غلجیو) او کرلانی ټبرونو پوری اړه لری لکه هوتك ،توخی ناصر، تره کی، سلیمان ـ خیل ، علی خیل ، اندړ ،څاڅی ، څدران، منګل توتاخیل ، تنی ، مندوزی ، اسمعیل خیل، احمد زی ، عبدالرحیم زی،... سانیزی ،وردګ امیرخیل ، خروټی ، سهاك ،بابکر خیـــل ، آکاخیل ،ترهخیل ، هوتخیل ،اوریا خیل، ساپی جبار خیل ، نیازی ، خو یشکی او داســـی نور . په استثنا یی تو ګه دکو نړ او با جوړ څینی سیمی او ټبرو نه هم په منځنی ډلـه کی راځی .

۳ـ ختیزه یا ننګر هار ګړ دو دی ډلـــه چی له دورونټی او دسره له ککـړك څخـــه پیل مومی او مخ پر ختیځ او شمال ختیـــځ تراټکه رسی . ددی ډلی په سیمو کـــــی ددوو زیاتره سړ بنی او کرلانی ټبرو نـــو پښی میشتی دی لکه خو ګیانی ، شینوا ری ساپی ، مو مند ، ، یوسفزی ، داودزی ،خلیل دلزاك او نور دلته دکونړ او باجوړ څینـــی

ټبرونه لکه ماموند ، سالارزی ،او تمانخیــل ابراهیم خیل او نور گاونډی تر کا ږــــــی ټبرو نه دځینو ګړ دودی ځانګړ تیا وو( لکه دښوینګ) له پلوه په منځنی ډلی پوری اړه

لری. دغه راز لکه دمخه چی وویل شــــــو دکو هات خټک، بنګښ ، ښنو ځی او داسی نور ګاونډی ټبرو نه په کند هاری ډلــــــی پسی ځی .

# پښتو ادب

په مخکنی برخه کی دپښتو پر ژبنی
اړخ رڼا واچول شوه او پر پیدا ښت
آری ( منشاء) ، کورنی اړیکی او داسی‌نورو
ربړو (پرابلمو) یی لنډی لنډی خبری‌وشوی.
دادی په دی برخه کی ددغی ژبی ادبی اړخ
ترڅیړنی لاندی نیول کیږی او هغه له ټولو
تاریخی .ټو لنیزو کلتوری او تخنیکی‌څانګړ تیا
وو سره په یو څغلند الواك (نظر) تر کره
کتنی لاندی راوړو .

## دپیل او لر غونوالی ربړه :

لکه څنګه چی دبشری‌تو کم تا ریخی
پیر دلیك پیدا ښت سره را پیل کیږی
دغسی دیوی ژبی او بیا دهغی دادب تاریخ
پیل هم دیوه لیکلی سندله مخی ټاکل کیدای
شی . له بده مر غه پښتو ژبه له هغو
ژبو څخه ده چی لیکلی نښی نښانی یکی
دومره لرغونوالی نلری • تراوسه یکی نه دکوم
زاړه ډبر لیك څرګ‌لګیدلی اونه دکومی زړی
سکی یا څرمنی چی کومه کلمه یاکرښه یی‌را
خوندی کړی وی اود هغوله مخی یی دژبنی‌او
ادبی تاریخ رښتینی پیلیځ(مبتداء) وټاکو •

داچی دپښتو ژبنی تاریخ‌لکه پاس‌چی‌وویل
شول، دځینو څانګړو نو مونو په استنادسمد
لاسه تردوو سوو مخزیږدی (قبل المیلادی)
کلونو پوری پر شاځی مګر ادبی تاریخ یی
سمد لاسه تراوومی‌زیږدی(میلادی) پیړی زیات
پر شانه ځی او هغه هم‌دامیر کروړ دویاړنی‌له
مخی چی پټی خزانی را خوندی کړیدی•کڅه
هم داوسنی پښتو دلومړی‌لیکلی بیلګی په‌توګه
دغه سند نه‌یواځی دنژدی خپلوانو ژبو بلکی
دنړی دنورو ډیروژ بوپه پرتله پوره لرغونی
دی اوښایی که تردغه سند کوم بل سندیوه
نیمه یادوی پیړی دمخه رابر سیره هم شی
په اوسنی پښتو به اړه ونلری ، بلکی دمخکنی
پښتو له بیلګو څخه بهوی• دپښتواوسنی پیرد
دری (پارسی) له مخی‌داسلام له راتګ سره
سم راپیل کولای شو، نوپه‌دی توګه به داټکل
وکړ و چی دامیر کروړ تر ویاړنی دمخه‌به
داوسنی پښتو ادب پیلیځ تریوی پیړی‌زیات
دمخه نه وی داچی په ټولنیز ډول ددغی ژبی
ادبی تاریخ له کوم مهال را پیل کیږی، په
څغرده ویلای شو له هماغه مهال چی دادیوی
ژبی په‌بڼه دخبرواترو یا پوهیدنی اوپوهنی
دوسیلی په‌توګه‌په‌کار لویدلی‌ده چی‌که‌دپارسی
غوندی یی‌ژبنی تاریخ‌دری‌نیم زرکلن وی‌نوادبی
هغه به‌یی هم له دوه‌نیم زرو کلوکم نه‌وی•

دغه اټکل دویدی‌اواوستایی‌ادبی پاتی شونو
(بقایاوو) له مخی کیدای‌شی چی لرغونی پښتو
به‌هم هماغه مهال لږ وډیرادبیات در لودل،
لږ ترلږه په هو کلوریکه اووګړنی‌یاګړنی
بڼه له‌پخوانیواریایی(ویدی او اوستایی)سرود
ونو سره داوسنیوفولکوریکو یاګړنیو (شفاهی)

ادبیاتو جوړیز (شکلی) ورتوالی‌هم‌زموږپاسنی
اټکل لاپسی ټینگوی.کوم ارخاییك (لرغونی)
ژبنی اوادبی رنگونه‌چی‌په اوسنیو فولکوریکویا
گړنیو پښتوادبیا تو کی لیدل کیږی ، پـــه
رښتیا یوبل داسی لاسونه‌دی چی دپښتوادب
لرغونوالی ډیر شاته ولاړی شی‌اوخپرونکوته
داباور پیداکوی چی دغی غرنی اوکوچانی ژبی
به‌نوری ډیری پټی خزانی هم منځ نه راوړی
وی او هماغسی به درمانی به کومی کی ډوبی
ډوبیا پاتی شوی وی .

دپوهاند حبیبی دغه اټکل چی دزړی پارسی
دبیستون دو ه‌نیم زر کلن ډبرلیك له آره په
پښتو پوری اړه لری په‌بله وینا یو پښتو
شعردی ، بیخی دمننی نه دی . هسی خود زړی
پارسی او نورو خپلو انو زړو ژبو هرمتن‌لــه
پښتو سره نژدیوالی اوورته والی لری مگر
دپښتووالی حکم‌پری نشی‌کیدای (دپښتوادبیاتو
تاریخ دریم چاپ ۲۵۹ مخ) البته ددغه پوهاند
دا الواك (نظر) چی په (۱۹۰) مخ‌زیږی دی
(قبل المیلادی ) کال یوبودایی اثرله آره په
زړه پښتو کښل شوی‌دی دورکړی حوالی‌له
مخی یوخه دمننی وړبریښی لکه څنگه چی ددی
لیکنی په لومړی برخه کی‌ورته هم نغوته وشوه
(دپوهاند حبیبی‌دپښتو ادبیاتو تاریخ دریـــم
چاپ دسر یزی‌دولسم‌مخ)٠دامیرکروړ ترویاړلی
اوپه پټه خزانه کی دنورو خوندی شویوپښتو
شعر ونود مخه سمدلاسه دپښتو ادبیاتودخرگ
لگونی لپاره یواځینی اخځ (ماخذ) پښتو
فولکوردی چی اروانبادااستاد پروفیسور مورگن
ستیرنی به‌یی تل دخیړنـــی سپارښت کاوه
هغه به ویل :

«زمایه ذهنی اوروحی ژوندکی دخوشحال
خټك شعرونه اوپښتو لنډۍ ډیر ارزښت لری
او خوښیږم چی یوه ورځ په دغو برخو کی
هم گټوری خیړنی اوپه زړه پوری خپرونـــی
وشی .» (دپښتو خیړنو دنړیوال مرکز پـــه
نړیوال سیمینار کی دمورگن ستیرنی وینا -
پښتو خیړنی دپښتو ټولنی د ۱۳۵٦ کال
خپرونه ).

دغه راز به دامیر کروړ ، بیټ نیکه اودنورو
لرغونو پښتو شعرونو خیړنه او ښننه چـــی
دپټی خزانی او دسلیمان ماکو تذکری‌خوپاڼو
راخوندی کړیدی ، هم دامرسته وکړای شی
چی ددغی ژبی تاریخ نور هم زیات لرغونی
وانگیریږ و،هغه هم‌دنوروخپلوانو ژبو له‌زړوادبی
متنو سره دپرتلی له لاری ، لکه څنگه چی
پوهاند حبیبی هم دغه ټکی ته گوته نیولی‌ده
(دپورتنی خپرونی ۱٦- ۲٦ مخونه) له هغو
زړواخځونو څخه چی پټی خزانی تری بالواسطه
زړی بیلگی را ترلاسه کړیدی هم داجوتیږی
چی آن دامیر کروړتر شعردمخه هم نوری‌ادبی
بیلگی شته وی لکه تاریخ سوری چی دعلی-
محمد بستی لیکنه‌وه اوشیخ کته متی زی غوریا
خیل تری پخپله تذکره (لرغونی پښتانه) کی
دامیر کړ وړ ویاړ نه ، داسد سوری و یرنه
دبنکارندوی بوالله اوداسنی نورشعرونه را
اخیستی اوبیا محمد هوتك له هغه څخه پټی
خزانی ته رالیږدولی دی .

په هره توگه بیاهم تر خوچی بله زړه ادبی
بیلگه که پرډبرلیك وی اوبیا پرسکه په لاس
ته‌وی راغلی، دپښتو ادب تاریخ‌پیلیځ سمد-

لاسه دامیر کروړ ویاړ نه ده چې دویلو نیټه یې (۱۳۹) لیږ دی (هجری) ښوول شویده •

تذکرة الاولیا :

سوری تـــاریــــخ ، لـــر غـــو نــــی پښتانه ، پټه خزانه‌او داسې نوری لرغونی تذکری داخل (یقین ) رابښی چې پښتو تردی او نورو خپلو انو ګاونډ یو ژبو څخه دمیراوړ- ده ادبی دود (عنعنی) څښتنه ده اوهیله‌ده‌چې پەراتلونکی کی‌یی نوری پټی خزانی هم‌دزمانی له خپټی را ووځی او تاریخ یی نور هم لرغونی اوبډای شی •

دوګړنی اوګړنی (شفاهی)ادب داسی ارغونی (ارخاییك) توکونه (مواد) په لاس راکولای‌شی چې دهغو له‌مخی‌هم‌پښتوادب لازیات لرغونتوب اوبډایتوب جوت کړشی • په تیره لنډی، ناری او متلونه چې زموږ دخیړنی لپاره ترنورو فولکلوری بیلګو ډیری غوره او پـــه زړه پوری دی •

پښتوادب دیوه ژوندی ادب په توګه :

له دی سره سره چې پښتوادب اږو ډیر ددرباریانو او لوړو پاټکوله‌خوا هـم روزل شوی اوستا یوال (مداحان)یکی تیر شوی‌دی مګر زیاتره روزنه یی دزیارکښو پرګنو له خواشوی ده له دی‌کبله‌یی‌دبل‌هرادب له تولنیز ژوند سره‌اړیکی زیاتو پراو پیاوړی دی •نوکه ووایو چـی‌ـپښتو ادب دپښتنویوژوندی‌تاریخ دی او ددوی‌دټولنیز، وټیز(اقتصادی )اوفرهنګی ژوند یوه ځلانده هینداره ده، یوه بی‌سروبوله خبره به‌نه وی •

آن په همداغه لړکی برخه‌کی‌هم‌چی له‌سوریا- نو، غور یانو را نیولی تر لو د یانو اورمړو ختکواو یو سفز یو پودی دامیرانو، واکمنانو او خانا نواو په هغو پوری دتړلیو ستایوالو شاعر انواو لیکوالو له خوارامنځته شوی •

دپښتنی اولسی ژوند او هیوادنی مینـی بڅری له ورایه ځلیږی که دامیر کروړپرخوله به دانغمه روانه وه چې•

خپلووګړ ولره لور پیرزوینه کـــوم

دوی په‌داو ینه‌بنه‌بامم‌بنه یی‌روزنه‌کوم

تل یی ودنه کـــوم

له ما اتل نشته

نواحمد شاه بابا دډیلی پرتخت بانډی‌هم خپله پښتو نخوایادوله :

دډیلی‌تخت هیروم‌چې

رایادکړم ـ زمادښکلی پښتونخوا دغروسرونه

او خوشحالخا ن ختك دافغان په‌ننګ او ور نګان را پرځول اوویل به یی :

دافغان په‌ننګ می‌و تړله توره

ننګیالی دزمانی خوشحا ل ختك یـــــــم

په دی توګه پښتو ادب‌دچا خبره په‌دربارکی هم(درباری) شوی نه‌دی، بلکی تل‌یی له‌خپلو پیدا ګروز یارکښو پر ګنوسره خپل‌اړیکی ټینګ ساتلی او کوم جوت بریدیی ورسره‌نه‌دی جوړ کړی • په دربارو کی دمیشتو شاعرانو ستاینی دنورو ژبو ستاینو ته ورته‌نه دی بلکی زیاتره دجنګی سند رواو حماسورنګ لری‌چې دغوری سو بمنانو همر کاب شاعرانوهغه یی غوره ساری دی ملکیار غرشبنی دشهاب‌الدین غوری په ملګرتیاکی داسی ویل :

غاز یانو راشی ـ ټـــول شاو خـــوا شی

دشهاب‌په ملاشیء •

ښښتن مومل دی •
اوس موير غل دی
او تا یمنی دغیاث الدین غوری په ستاینه کی بیاداسی بی ښندی (بی مبالغی) پاڼکی کښل:
دفیروز کوه او غور رنا له دهده
هم دتیرو تورو بریښنا له دهده
همدارنګه صوفیانو
پښتنو شاعرانو په خپلو شعر و کی یواځی دګوښوالی او نړی غندنی اویاد لاهوت وجبروت وچی کیسی رانغښتی نه دی بلکی له هغو ټولو ناخوالو سره چی نور اولسونه یی دتصوف خواته هڅولی دی • دجنګ جګړی سپاریښتنه او تلقین هم کوی لکه دمغولوله تاړاکونو سره چی عربی،دری اوتورکی شاعران یی تصوفی شاعری ته ورځکول باباهوتك خپلو پښتنو ته داجنګی سندره بلله :
پرسور غوبل راته نن اور دی
وګړیه جوړ راته پیغور دی
پرګلی کور باندی مغل راغلی
هم پرغزنی هم پرکابل راغی
غښتلیو تګ کړی دا مووار دی
مغول راغلی په نلو اردی
په پښتونخوا کسی یی نا تاردی •••
بایزید انصاری‌خوګرد سره تصوف‌اومبارزه سره‌داسی واخښل راواخښل چی‌نه یی‌ترهغه مهاله کومه بیلګه وه اونه یی راوروسته کوم ساری ، پیدا شو •
رحمان بابا سره له ټولی صوفیانه‌شاعری بیاهم دخپل مهال‌اوچاپیریال غږداسی راپورته کاوه :
په سبب دظالمانو حاکمانو
ګورو اوروپیښوردی واړه‌یودی

دلیکنی ادب ترڅنګه‌چی پښتوژبه او پښتانه پری‌ویاړی ، هغه یی‌عامیانه یاو ګرنی‌او ګړنی ادب دی چی‌نه دبڼی اونه دمانا له پلوه‌دکوم بل ادب تراغیزی لاندی دی اوپه داسی پرګنواړه لری چی لیك لوست یی زده نه‌وه او همدغه دلیك لوستی ددی لامل یی شوی چی‌ترلیکنی ادب زیات له خپلو زیارکښو پر ګنو سره اړیکی پیدا کړی اود ژوند انځور ګرڅی شی•
په پښتو کی وګړنی سندری ساده وګړنی (عامیانه )اند اوژوند له ټولومو خواو اندیښنو سره را اخلی لکه دین ـمینه ـافسانه ـجنګی اوسیاسی پیښی • دجولی اوبڼی له‌پلوه پکی دنوروژ بود پرد یو شعری ګیارو ځرك نه‌لګیږی بلکی ځانته بیل تول اوتال دود، او قاعده لری اوله دی سره ډیره رنګارنګی اوتنوع سندریز او غنایی اړخ یی زیات پیاوړی دی اوتل له سازاو ټنګ وټکور سره نه شلیدونکی اړیکی لری •
داندوما نااومحتواله‌پلوه‌دپښتوادب دغه‌برخه له لیکنی هغه سره له هر پلوه توپیر لری په دغه وګړنی ادب کی دعرفانی اوصوفیانه مینی ځرګندونه نشته او ددوکتورمجروح خبره هیڅ کومی صوفیانه او عرفانی لری وریځی ددی ادب شین آسمان نه تتوی •
له لیکنی ادب سره دګړنی ادب بل توپیر دادی چی دهیڅ کوم باداراوز ماحدارمدح پکی نشته دغه راز دښکلی هلك مینه اودهغه دځیری او خدو خال‌ستاینه چی‌په لیکنی ښتو اوپه تیره په لیکنی دری ادب کی ګله دروحی‌بی لاریو سرحدته رسول کیږی په پښتوګړنی

ادب کی نه لیدل کیږی اوپه پای کی پهوییواو الفاظو راز راز لوبی اونخری او مانیز ابهامونه اوموشگافی چی ددری ادبپهانحطاطی دوروکی کله کله ډیری بی ځایه اوبی خونده شوی، په دغه ادبی برخه کی نه بریښی •

کوم څه چیپه پښتو گړنی ادب کی زیات مومو، هغه ډیر ساده مگر ډیر ښستیز خیزونه دی دا داسی انسانی سندره ده چیدانسان آرسپخیلی اوژوراحساساتاوعواطف څرگندوی په سر سری اوخیزونو پسی نگر ځی•

داسی یوه سندره چیپه دی خاوربنه نړی کی انسانی درد ونه، ارمانو ، خوښی اونهیلی، گروهونه او خوندو نهڅرگندوی دانسان لهننگ اوبی ننگی، جنگ اومینی ، بیلتون اوپیوستون اوپه لنډ ژول له مرگ اوژوند څخه غږیږی• دا سندره طبیعت ستایی، سندونه اوځنگلونه غرونه، رغونه ،دری اودښتونه ورځیاو شپی، لرملونه ،برملونهاوترملونه یادوی پهلوستلویی سړیته داسیاحساس پیدا کیږی، چی گوندی دشعر او شعریتلوړنیسر چینی ته رسیدلی• په تیره هغه برخه یی چی ښځینه نوژی اړه لری نه یواځی دهغی دموضوع په توگه بلکی دهغی دزیږ ندویی او پیدا گریپه توگه هم (مجروح : پښتو خیرنی – پښتو ټولنه ۱۵۰٤)• دپښتو گرامری ځانگړ تیا (خصو صیت) موږ ته دالا سو ند را پهلاس کوی چیپه اولسیادب کی دښځمنو برخه په اسانه جوته کړای شو اوهغه نوزیږ (جنس) یا دنر اوښځی توپیریدل دی دساری په توگهپهدغه سروکی کی یوهښځینه خیرهلهورایه ځیلیږی، چی وایی :

په انتظار کی دجانان ولاړه یمـــه
بارانه مه راځه مانبام دی

یاپه دغو وروسته لنډ یوکی :

که دی دیدن زما په کاروی
په باغ یی گرځی خرما غواړی
پهستر گوړوند شی خرما زهولاړه یمه
اخر به وران شی پیښوره
دننگرهار پیغلی ښیرادرته کویـــــنه
داپیغلتوب می دغم دود کړی
راپسی مری تنگی څوانان کاږه بریتونه
مسافر تلی درجگه نشوم
په زړه مړه وم ماویل تله به دیدن وینه
داپاس آسمان گوره چی شین دی
داسی می زړه درپسیشین شومړه بهشمه
جگړی ته مادر سره بو ځـــه
چی دی په جنگ کیکومکی ولاړه یمه
جانا نه سر پروطن کیږ ده
چی دهمزولوله پیغوره خلاصه شمـــــه
خدایه بی ننگه زوی راهـــه کړی
کهیی دیدن پسی ړنده په ستر گوشمه
مینه دی پټه زړه کی ساتم
زه پښتنه یم مینه نه رسوا کومــــــــه
نن می همز ولی میلمنی دی
پرکلی گرځم بالښتونه ټولومه
دپښتو ادب نوی پیر :

دشلمی پیړی ملی پا څونونه ،اولسیغور-ځگنونه اوټولنیز انقلابونه پرپښتون اولس هم بی اغیزینه ووله یوی خوایی دخپلی خپلواکی دگټلواودو لسواکیدسمبا لولولپاره له نړیوال انگریزی ښکیلاك اولهبلی خوایی له کورنی

فیودالی ځبیناك سره په سړواو تودو جنګ جګړو لاس پوری کړ۰ داجنګ جګړی یی هغه مهال لاپسی توندی اوتودی شوی‌چی په‌شمالی ګاونډ ی‌هیواد کی‌یی داو کتوبرستر سوسیالیستی انقلاب‌بریالی شونو په‌دی‌توګه‌یی‌خپله له‌لاسه‌تللی‌بشپړه خپلواکی‌اوولسواکی لږه‌موده وروسته ترلاسه‌کړه‌اود پیدا ګروځواکونودودی لارخه ناخه سمه شوه ، دغو ټولو او ښتونونو یی پرادب هم ستر اغیز وښانده او هغه یی‌په ځانخبری (شعوری)یوه نوی بشپړتیایی‌پړاوته ورسیخ کړ دغسی یو رنسانس یی په ګړی اولیکنی دواړوبرخو کی پیښ شواو هغه‌مخکنی ټړی :

که‌په میوند کی شهید نشوی

ګرانه لالیه بی ننګی ته دی ساتینه
خال به دیارله وینو کیږدم ۰
چی په باغچو کی ګل ګلاب وشرموینه ۰

یی دغزابه لازیاتورنګینو حماسو کی ونغاړل شوی او ورووروویی لیکنی ادب ته هم لاروکړه۰

په ۱۹۳۶ کال چی پښتو دهیواد یواځینی رسمی ژبه شوه او دوروزنی پالنی لاری چاری یی پراخی شوی ، نو پښتوادب لاپسی وغوړید او سمسور شو ۰

دشوروا په اوومه دوره کی چی ملی توکونو او پوهنتونی محصلینو لـــه خــوا دملی او دموکراتیکو سیاسی حقوقو په خاطر سیاسی ډلی ټپلی په یو څه زیات سازمانی ډول‌رامنځ ته شوی ، دګران افغانستان دنورو او اسونو او ملیتو نو غوندی پښتون داهم راویښ شو اوله دی وینیتیا سره یی کلتور او ادب نورهم پسی راویښ شواو لومړی ځل یکی سیاسی اندځای وموند ۰ دیوه وګړنیز او پرګنیــز (خلقی اوتوده یی) هنر په توګه دپښتوادب را خرګند یدل په هیواد کی دکارګری ګوند له رامنځ ته‌کیدو سره‌سم‌پیل شول‌چی بیادهمدغه ګوند په‌مشری دثور دژغورنده انقلاب لـــه بریالیتوب سره یو مخیزه دیوه نوی انقلابی اوښتون په درشل کی ودریداو یوه ښیځی نوی استازی (رسالت ) او ژمنی (تعهد) ورترغاړی شول چی په داسی حماسویی پیل کیدء :

ځپی دنوی ژوند دی ځپریږی له فضا نه
اولسه دافغانه ! نیکمرغ دی انقلاب !
ښکیلاك ځی اوځبیناك ستاله‌ګران‌افغانستانه
اولسه دافغانه ! نیمکرغ دی انقلاب !
له‌یوه ښکریی چی وویشتله بل ته
دایشیاپه زړه کی ځکه زلزله شوه
داځوا کلیز دبوله دپاڅکونه دښکرو ۰۰۰
برایلی دلته دثور که ثوره شوه
کومه بیلاری چی دامین غوندی امریکایی

ګوډاګی په لاس زموږ په ملی او دموکراتیك انقلاب کی رامینځ‌ته شوه ، په ښکاره ډول‌یی پښتو ادب په خپله نوی انقلابی تګلوری‌او استازی کی څه ناخه له ځنډ او تم سره‌مخامخ کړ، مګر له هماغه ترور او اختناق، شکـنجو اوزند یو سره‌سره زندی‌نه‌شو اودزندان‌دتورو میلو شاته یی پټوانګازواو لسونه خبر کړل:

ددی هیواد په سمو غرو نوکی نـــن
دانګازی دانقلاب دانقلاب

دهر یوګل او دبلبل پر ژبـــه
دی حمــاسی دانقلاب دانقـــلاب

باور پـــر جیر دزمان دی زمـــوږ
چې دبل کال ارزویی زړوکی زمول کړو
هسې پر خپل بری ایمان دی زموږ
ترڅو چې هما غوزندانی نغمو» رښتینوالی
وموند او دجدی له ژغورنده پاڅون سره یـــی
خپله څنډیدلی‌تاریخی استازی‌اوژمنی (رسالت
اوتعهد) بیاله سره په‌نوی انقلابی‌رنګ‌او خوند
کی را ټینګه کړه :
په ننګیا لو هیواد والو :
خپلواکی مـــو مبـــارك !
دامین دبـــانـــد له بنده
آزادی مـــــــو مبارك !
چې وهلی فا شیستانو ـ له‌تاریخ‌سره‌ډغری!
چې‌تری خلی جوړول یی ـ اوس‌به‌خودی‌خپل
ککری
چې‌دخلکو زوریی‌ولید ـزوراو‌به‌شودسرزورو
اوس به‌لوبی‌شی‌پرهغو ـ چې‌یی‌کړی پرنورو
ددی نوی‌او ښتون اودبری مو مبارك ...
ددغو دروډلو پښتوګړ دودو یاپه بله ویـنـا
دروډلو پښتوګانوو ښشنه‌ددوو بیواکو (کنسوننتو)
آوازونو (ښ‌ـږ) ددرو ګونو وینګونو(تلفظونو)
له مخی شویده• په‌کندهاری پښتوکی (ښ‌ـ)
ش ته‌او (ږ) (ژ) ته نږدی ویل کیږی• پــــه
ننګرهاری کی‌ښ‌پرخ اوږی اوږپرګ‌اوپه‌منځنی
کی دښ ویـڼـګ د(خ)او(ش) او دږونیګ‌د
د(ګ) او د(غ) ترمینځ‌دواولو آوازونوله‌مخی
ژرد ابهار به دچابروش تیر
هم ځینی تو پیرو نه را مینـځ تـــه کیـږی
خو د عمو مـی ګـړدو دو پـه و پشتـمه
کی دو مره جوت اغیز نلری ، لکه دیکتیااو
وزیرستان په پښتو کی چې ، (الف) پر (و)
او (و) پر (ی) اوړی او داسی نور •

معیاری پښتو یاپښتو ګړ دود •

کوم معیاری پښتو ګړ دودیا معیاری پښتو
چې دټولو ګړ دود و په ښکارندویی‌دورځـــی
لیکنی یارسمی ادبی او علمی کارونی لپاره
څه نا څه دود موندلی دی ، دوینګ له مخی
زیاتره پمنځنی پښتو ډډه لګوی اودو یی‌پانګی
(لغوی زیرمی) له پلوه په ټولو سیمه ییزواو
تاریخی ګړ دودو نوباندی • ددغی معیاری‌پښتو
ښکارندویی په ننیوچاپی او څپه ییزو (رادیو
تلویز یونی) خپرونو کیږی چې‌په نیم‌تړونی
اونیم ځانخیری (شعوری)ډول رامنځ ته شویده
مګر کیدای شی په پوره تړونی اوآګاهانه ډول
یی دواکمنوژبپو هانو له خوانوری معیاری
خواوی هم وربشپړی شی اولکه دنړی دنورو
یادو کولتوری اوعلمی‌ژبو (انګلیسی، روسی،
جرمنی، پرانسی ...) غوندی دیوی رښتینی
معیاری بنی په توګه دخپلی ویو نکی‌ټولنی
(پښتون اولس) له خوا یومخیزه ومنل شی•
په دی برخه کی دلیکو نکی یو پیشنهاد ،خپور
شوی دی چې(۲۱۰) مادی‌لری اودنوی ژبپوهنی

اودنورو نړ یوالو پراز مینتوباندی یی ښه ټ اینبودل شویدی او هیله ده ژر تر ژره عام نښت پیدا کړی اوپه دی توګه پښتانه هم دیوی یواځینی‌بشپړی نګه اوکره ادبی‌اوعملی ژبی خښتنان شی .

دپښتو اوسنی لیك اودهغه‌ستونزی .

---

دپښتو پراوسنی لیك او الفبایی سیستم ترخبردمخه باید ووایو چی لیك اوژبه‌سره یونه دی په بله وینا نه لیك دژبی کوم ټوك یابرخه ده‌اونه ژبه دلیك کوم ټوك یابرخه .

لیك تش‌دژبینونښو(سمبولونو)ویبز اوانځوریز (بصری او صوری ) سمبولونه دی‌چی په ګوتو یاماشین دکاغذ اویا تختی پرمخ کښل کیږی اوپه دی توګه دژبینو سمبولونو تجسم او ښکارند ویی کوی . ژبنی سمبولونه په‌ساده اوړوستووغږونو یاآوازونو(فونیمونو)ښنل کیږی اولیك په‌ساده‌ساده توریویاحروفو (ګرافیمونو) بشپړ اوسم لیك هغه دی چی دهر فونیم لپاره یو ګرافیم ولری .اللهه داچی که ژبه‌زموږ دافکار واو خیالاتوسمبول او ښکارندوی بلل کیږی ، نولیك په رښتینه دسمبول سمبول‌دی. تیلګرافی (مورز) نښی چی دبیلابیلو توریو ښکارندویی کوی، دسمبول،سمبول ورته‌ویلای شو .دغه راز شمیر نښی (لکه ۱ـ۲ـ۳ـ٤ـ٥٠٠) تیلګرافی نښوته‌ورته دی‌چی‌که لاپه مورزواړول شی ، خوګرایه (خوچنده ) سمبولا یز کیږی. اوسنی پښتولیك به ومنوچی لنډ، اقتصادی اواسان دی خوداچی د(ویل)او (لوستل) ترمنځ سمه استازی او ښکارندویی نشی کولای ، لیکونکی رنګوی او لوستونکی زنګوی، نویی ترګټی یی زیان لړنه‌دی یوزده کوونکی اونوی لیك لوست زده کوونکی خومره مهال اوکړاو تیروی چی هغه یاد کړی اوبیاپکی لیکونکی او لوستونکی شی . سره له هغی یی دژوندترپایه له تلفظی ستونزواو تیرو تنو څخه ځان نشی ژغور لای . که موږ رښتیاپه پوره ډول خپل دایك ولوست‌دزده‌کړی‌لوړی‌وختونه اوکړاوونه رایادکړای شواویالږه ترلږه‌خپل‌کوچنیان‌اونوی شاګرد آن په پوره غور تر کتنی لاندی ونیسو هرو مرو په دغه پورتنی ترخه حقیقت‌ته‌غاړه کښیږ دوچینی او جاپانی لیکونه هم‌ډیولنډ اسان اوژرلیکل کیدونکی دی مګردا پوښتنه هم ځوابول پکاردی چی زده کول یی څومره وخت اوکړ او غواړی .

زموږ دزاړه لیك په چوکات کی تربسل هرلیك داړونی تیروتنی اوتیرایستنی (تحریف) اشتباه او تقلب کیدون زیات دی دادی دغه ټولی ستونزی په وروسته ډول لنډیز ومی:

۱ـ زموږ او سنی الفبی له آره (اصلــــه) یوه عر بی الفبی ده او ښایی له عر بی پر ته عبری او داسی نورو سامی ژبو لپـاره ګټــوره وی ، نه دپښتو غونډی دیوی بیخی جـــــلا بلی‌کورنی ژبی، لپاره، چی فونیمیك، جوړښت یی کورټ بل راز دی او الفبی یا ابیځی‌له

(و - ای) پر ته نوری خپلواك نښــــــــــې (واولی توری) نلری او داعرا ب (فتــحه ، کسره ضمه ، سکون ، مد) په نامه چــــــې کومی نښې نښا نی لری ، هم کوم داســـی عام استعمال او تطبیق یی نشته چی هغه دی هرو مرو ددغی ابیځی یوټوك وګڼل شی.

موږګورو چی له پخوانه تراوسه عربی‌لیکنی او خپرو نی بی اعرا به دی او تش یی دکوم مقدس متن نیم او هغه هم دناعر بی(عجمی) ژبو لپاره تری چیری کار اخیستی وی که نه په خپله عرب او عر بی زده کړه وال هـــــر عربی متن دګرامری (نحوی) قاعد و لکـــــه جارو، مجرور ، ناصــب اومنصوب او نـــورو په‌زور لو لی او که پر دغو قاعدو پـــــوره لاسبری و لری ، بنایی له کومی تیرو تنـــی او بنمو یدنی سره مخامخ هم نشی . همـــدا خبره ده چی عر بی ګرا مر پو ها نو تـــــل یواځی بیواکو (کنسو ننتو) ته ارزښــــــــت ورکړی ، له خپلواکو (واولو) ځخه یـــــــی یواځی (و-ا-ی) ته غاړه ایښی او زورو زیریا پیش ، غږوندی او مد خو هیڅ په تـــــورو کی شمیری هم نه . حال دا چی (و-ا-ی) نه دمجهول او معرو ف او دیفتونګ او مو نـو - فتونګ شکلونه تو پیروی او نه یی ټکـــــی مراعا تیدای شی . له‌دی کبله عربی الفبـــی یوه تشه کنسوننتی (بیواکــه) الفبــی ده او له دی سره ځپیزه (هجایی) .ان تردی چــــی ځینی بیواك (کنسو ننتونه یی هم دتشد یـــد او تنوین ددودله مخی په الفبا کی ځــــا ی نلری سره له دی چی پښتو پکی کمو نی او زیاتونی هم کړی دی . د(ی) ګانو ډولو نــــه یی سره تو پیر کړی او غږګز بی(دیفتونګونه) ولی (بیدها)، ولی (چنار) ، ولـــی (یشه) ،

(ټ - ډ - ړ - ڼ )یی پکی جوړ کړی دی ،خو بیا هم له (۳٦) پښتو غږونو یا آوازو نوځخه یواځی (۳۲) آوازونه انځوروی .

داهم یوه ناشونی خبره ده چی ګوندی‌دغه الفبی دی دپښتو لپاره په اعرابی نښونښانو بشپړه کړ شی .

ځکه ددغه لاندی باندی نښوکارونه له ژبنی اوارتوګرافیکلو(لیکنی)بنستونوسره ټکرخوری. هغه‌داچی ګڼون‌اوالتباس‌پیښنوی. سپمااوآسانی یی نه سمبالوی . زده کړی یی ګرانیږی‌اود لیکونکی اوپه تیره لوستونکی لپاره‌لوی سرخوږ اوستونزی‌پیښنوی. دچاپونی،ټاپونی، پولی‌کاپی کونی او نورو برخوکی خولاځه کوی چی له خطاطی اوکلیشه یی اوافسیتی (عکسی)سیستم پرته بل رازګیدون نلری اوداکار ډیرو خت

اولګښت‌غواړی‌ددی‌پرځای‌چی‌دغه‌لاندی‌باندی‌نښی نښانی وکاروو ، ولی یی‌په یوه بله بته‌ځنګ پرځنګ ونه‌کاروویایه بله ویناد‌لاتینی الفبی غوندی یوه بشپړ الفبایی‌سیستم ته مخه‌ونکړو، لکه ځنګه چی‌ژبه‌پخپله لینیال (ځنګ‌ترځنګ) بهیر اوسیستم بلل کیږی (اندری مارتن).

۲- عمومی التباس (ګډون) اونه توپیر،هغه داچی اوسنی عربی اری پښتولیك ډیر خپلواکی (واولی) سیمبو لونه نلری اودعربی اعراب‌یی هم په‌درد نه لګی ،نوپه‌دی‌توګه ډیرپښتووییونه سره‌ګډون‌اوټکرپیداکوی اولوستونکی ګنګسوی لکه سره (با) ،سره(سرخ) ،سره (طلا،سرخها) له سره (ازسر)، سره (پارو) یاپورویی سره (کره) ....، ولی (شانه)، ولی (شانه ها)،

ولی (چرا) ،ولی (میزنی)ولی (میزند)، ولی (جو یبها)، دولی(ازبید)،ولی(دپورویی‌او خانگړی نوم په توگه )٠ دغه راز دراوستاړی (پسوند) په توگه لکه په (وروروالی) او (خوروالی)کی لکه چی وایی (ولی دولی‌دغاړی ولی ولی ولی؟) همداسی لور (طرف ، داس، دختر- رحم٠٠٠) درواخله !

٣ـ نه سپما، هغه داچی دغه اوسنی پښتو ابیځی (الفبا) ځو، ځوبی‌لری ځانته یورازایکل کیږی اوله نورو تورو سره په یوځای کیلوکی په بل راز بنه او بڼوله الف د،ډ،ر،ړ،ز،ژ،ږ،او، وپرته چی یوډول یی آزاد (مفرد) اویویوډول یی مرکب دی ، نوره ټوله ابیځی یوبوسادد ډول لری اودری مرکب ډولونه‌نوکه دالړه برخه (٢) ضریب ولری ، نوره ټوله (٤) ضریب‌واری په‌دی ټوگه‌ددغی‌ابیځی شمیر(١١٠) ته رسیږی بی له دی چی زمونږ له (٣٦) آوازو څخه تر (٣٢) زیاتو ته ځواب وویـلای شی یـــا التباس راتیښ کړای شی ، بلکه لایی لوړوی. لاتینی هغه که په‌لاس لیکنه‌کی تر کیبی ونـه کارول شی په ټاپو نه او چا پو نه کی دغتو او ووړو تورو له تو پیرو نی پر تـــه نور شکلو نه نلری چی داتو پیرو نه لایوه‌بلـه گټه لری او دلیك څـر گنـد تیا ز یا تو ی دلیکنی او پراگراف سر او ځانگـــړ ی نو مو نه پری تو پیر یږی او داسی نور . په تخنیکی برخه کی خو په هره تو گه دد غــو دواړو سیستمو نو سپما او نه سپما ســـره تو پیر یدای شی.

وی یا دلیك لو ست دزده کړوځو (کورسو) لویان او یا گرد سره بهر نیان ، په مودو مودو دیوه نوی زده‌کوو نکی سر په دی نه خلاصیږی چی دساری په ډول (ب) و لـــی په څلور ډوله لیکل کیږی او ولی څو ځـــو کلمی یو راز بڼی او بیلا بیلی ما نـاوی لری لکه دمځه یی چی بیلگی وښوول‌شوی دټاپولو او چاپولو ستو نزی خولاځه کړی کـــــــه یو تاپو ونکی (ټایپست) لاتینی ټـا یـپ له‌تج سیستم سره په میاشت کـی یادوی، پښتو داپه دوو میاشتو کی هم نه شی یادو- لای . کومه کار خانه چی داو سنی ابیځـــی لپاره لیك ماشینونـه (تایپونـه) او چـاپی توری او وسیلی برابروی زیا تی ستونز ی او لگښت غواړی او په دی توگه اخستو نکی لپاره هم گران پر یوځی٠

٥ـ پـــردی سر بیره چـی پـه اوسنـی پښتو ابیځی کی دغټو او وړو تورو دتوپیر نشی کیدای او له دی سره یی څر گند تیـا پوره سمبالیدای نشی، دو یی(کلمی) یووالی هم څرگند ولای نشی هغه داچی دتـــورور غاونی او یوځای کـیدنی ځا نگړ تـیا وی (خصوصیات) دویبولـه رغـاونی سره سمون نلری‌دساری په توگه (پوهنځی) یــو نــوی ارو پایی پښتو زده کوو نکی په دی سو چ کی‌اچوی چی‌گوندی داویی له (پو) او (هنځی) څخه جوړ شوی ،نه (پوهنی) او (ځـــــی) څخه .

غریزه (فونمیك) الفبا د حل یواځینی لاره

---

ددی لپاره چی داوسنی عر بـــی آری

٤ـ گرانی او هغه هم زیاتـــره د زده نیمگړی الفباء یا ابیځی له پور تنیو ستو نزو کوونکو لپاره ، که دلو مړی ټو لگی‌کوچنیان څخه موزغورنه مو ندلی وی ، نو بر ځـــای

## الف

| نوی توری | زوړ توری | تلفظ | بېلګه | |
|---|---|---|---|---|
| a | ـَ | زبر | سر | sar |
| ā | ا | الف | کار | kār |
| b | ب | بې | بر | bar |
| c | څ | څې | څار | cār |
| č | چ | چې | چار | čār |
| d | د | دې | دود | dōd |
| ḍ | ډ | ډې | ډاډ | ḍāḍ |
| e | ې | ې | ادې | adę |
| ə | – | زورکی | تره | tra |
| g | ګ | ګې | ګډ | gaḍ |
| ǧ | ږ | ږې | ږيره | ǧira |
| ɣ | غ | غې | غر | ɣar |
| h | ه | هې | هر | har |
| i | ي | يې | وير | wir |
| ǰ | ځ | ځې | ځای | ǰāy |
| j | ج | جې | جنګ | jag |
| k | ک | کې | کر | kar |
| l | ل | لې | لر | lar |
| m | م | مې | مور | mōr |
| n | ن | نې | نور | nōr |
| ṇ | ڼ | ڼې | روڼ | ruṇ |
| o | و | اُو | ګل | gol |
| ō | و | اُو | کور | kōr |
| p | پ | پې | پور | pōr |
| r | ر | رې | تار | tār |
| ṛ | ړ | ړې | پړ | paṛ |
| s | س | سې | سم | sam |
| ṡ | ش | شې | شار | ṡār |
| t | ت | تې | تور | tōr |
| ṭ | ټ | ټې | ټول | ṭōl |
| u | و | اُو | سور | sur |
| w | و | وې | وار | wār |
| x | خ | خې | خور | xōr |
| x̌ | ښ | ښې | ښار | x̌ār |
| y | ی | يې | يور | yōr |
| z | ز | زې | زر | zar |
| ž | ژ | ژې | ژر | žar |
| ay | ی | ای | سړی | saṛay |
| āy | ای | آی | ځای | ǰāy |
| əy | ۍ | ای | وړۍ | waṛəy |
| – | ئ | | | |

استثنا: ث (θ)، ح (ḥ)، ذ (ḏ)، ص (ṣ)، ض (ẓ)، ط (ṭ)، ظ (ẓ)، ع (c)، ف (f)، ق (q)، ء (') ، پرځای به ارتګېي ۷۱۷ .

ب

او دا هم د معیاري پښتو فونیمیک لیکلې بېلګه :

Dā xu jawạta aw manạle xabạra da , če
Paxtọ da Paxtunxwā yawa larγune žạba da , če da zarguno
kalụno pa uġdọ ke pre pōhawạl aw rāpōhawạl šạwidi .

Ḍēr pōhạn aw likwạl pake manj ta rāγạli di . ka
ye cạ ham ḍẹre sarẹ aw taudẹ lidạle di , xo byā ham da yawe
γaranạy žabe pa ṭọga krọra pāte šawe aw pa har tōrtạm pase
ye raṇā rāγạle da .

Dā pa ṭinga wayạlāy šu , če nan sabā Paxtanị
ṭōlạna max par xwajedọ da aw la parmaxtạg sara ba ye harumarụ
žạba hạm max par wṛānde ji .

Nạway γaġiz (phonemic) lik ba Paxto ta nạway žwand
wạ baxi aw da hararxịze parmaxtyạ aw dōdtyạ lpạra
ba ye lyār awạra krị .

دا ښه جوته او منلې خبره ده ، چې پښتو د پښتونخوا یوه لرغونې ژبه ده ، چې د
زرګونو کلونو په اوږدو کې پرې پوهول او راپوهول شوي دي .

ډېر پوهان او لیکوال یې منځ ته راغلي دي . که یې څه هم ډېرې سړې او تودې
لیدلي دي ، خو بیا هم د یوې ځلنۍ ژبې په توګه کره پاتې شوې او په هر تورتم پسې یې
رڼا راغلې ده . دا په ټینګه ویلای شو ، چې نن سبا پښتني ټولنه مخ پر خوځېدو ده او
له پرمختګ سره به یې هرومرو ژبه هم مخ پر وړاندې ځي .

نوی غږیز ( فونیمیک ) لیک به پښتو ته نوی ژوند وبښي او د هراړخیزې پرمختیا
او دودتیا لپاره به یې لیار اواره کړي .

یی دغږیزی (فونیمیك) الفباء دودو لو ته اړتیا پیښیږی . دالفباء یا ابیځی دلند ن ، سو سیلتی په هغه نړیوال فونیتیك سیستم پوری اړه لری چی دنړی دهر ی ژبی لپاره یو لړ توری په کار اچولای شی لکه دپښتو لپاره چی له ډیرو کلو نو راهیسی دبهر نیو پښتو پو هانو او کورنیو ژبپوهانو په ګډه مرسته ټاکل شوی او د ۱۳۵۵ کال دوری دمیاشتی په دیر شمه دواکمنو کور نیو پو هانو له خوا په پښتو ټولنه کی منل شویده .

هیله ده لکه څنګه چی اوسنی افغا نی ټولنی دملی وګړنی دمو کرا تیك جمهور ی دولت دفر هنګی پالیسی له غو ښتنو سره سم دژوند په ټولو اړ خو نو کی دپیر یو پیړیو پاتیوالی او پسمانی دجبران لپار ه دانقلابی ریفور مو نو او سدو نو تو ته پتیلی ده ، دپښتنو او نورو افغانی ژبو دپر مختیا او سمسور تیا لپاره دلیکنی‌سیستم یاپه لنډ ډول دالفبا یی ریفورم ته هم پاملرنه وشی دا کار هم د ژبپوهانو پرغاړه دی چی څنګه ورته عامه ذهنیت چمتو کړی او دغه معقول او علمی ریفورم لپاره عملی لاری چاری وپلټی . داد ی دلته سمدلاسه دپښتو دنوی غږ یز ی (فونیمیك) الفباء لنبتیلیك (جدول) وړاندی کیږی (دغه لنبتیلیك) لومړی ځل دپلو ښی مجلی د۱۳۵۵ په لومړی ګڼه‌کی خپورشوی‌او دټولو افغانی ژبو لپاره په پراخه شوی بڼه دعرفان مجلی د ۱۳۵۷ دلړم او لیندی په ګڼه کی چاپ ته سپارل شویدی .

## پښتو ویی پانګه (لغوی ذخیری) او نوی اړتیاوی :

ویی پانګه دیوی ژبی د ټولو وییو (لغتو) مجموعی ته وایی یاپه بله ویناویی پانګه دیوی ژبی هغه ټول مانیز او ګرا مری توکونه (عناصر) را اخلی چی هغه ژبه تری جوړه شوی ده . داپه دی مانا چی ژبه له آره له وییونو (لغتو نو) جوړه شوی چی دیوه ځانته سیستم له مخی سره او ړون (ترتیب) مومی او په دی تو ګه دخبرو وینا یا په لنډ ډول دژبی چار او جاج (عملیه او مفهوم) برخای کوی او سمبالوی ، و یی ، لغت یا کلمه دیوه یا څو ارزښتنا کو غږو نو (آوازونو یا فو نیمو نو) تر ټولو کوچنی‌مانیز یوون (واحد) دی چی یو احساس یو ساده جاج (مفهوم) څر ګندوی په بله و ینا و یی د ژبی تر ټولو یو ماناول ساده ټوك ته وایی چی په نورو زیاتو کو چنیو ما نیزو توکونو نه شنل کیږی یایی څوك شنل نه غواړی لکه : ونه ، کور ، سړی ، خوږل یاپه اشتقا قی او تر کیبی بڼه لکه پو هنتون جمال مینه ، سر ته رسول او داسی نور. له دوی څخه ځینی په خپلوا ك ډو ل‌څرګندونه کولای شی او ځینی بی د نورو له ملګرتیا کومه څرګندو نه نشی ښندلای . خپلوا ك وییو نه ، لکه کور، ډوډی ، کالی نا خپلواك لکه ته ، په ، کی سره .... و ییو نه په کړونو ( فعلونو)، نومو نو (اسم، صفت، عدد ، ضمیر،) او دادانو ( ناخپلواکوو ییونو) یا وییکوویشل کیږی .

دیوی ژبی د کولتوری او علمی بډایوالی او پراخوالی اندازه د هغی له ویی پانګی لګیدای شی، دلته دژوندګچه ، ښوونه، روزنه ، عمر ، چا پیر یال او نور ټو لنیز، وټه ییز (اقتصادی) فر هنګی اړو نه (شرایط) برخه او اغیز لری .

دپښتوغوندی یوه نوی مدنی‌کیدونکی اوعلمی کیدو نکی ژ به تر هر څه لو مړی دیوی‌پراخی او بشپړی و یی پانګی تثبیت او جوتتیا ته اړتیا لری . هغه په دی ډول چی لو مړی یی دلهجوی او متنی څیړنی او پلټنی له‌لاری خپله آره(اصیله) پانګه راټو له شی او بیایی نوره تشه له یوی خوا دځینو نویو مد نی‌او علمی نو مونو (اصطلاح ګانو) په ژباړ نه او ژاکنه اوله بلی خوا په‌پورونه‌او اخیستنه ډکه شی .

څکه په نړی کی هیڅ یوه داسی‌کولتوری ژبه نشته چی له هر راز بشری پرمختګو نو سره دنویو منځ ته راتلو نکو جا جو نو لپاره مخکی له مخکی په بشپړ ډول خپل آرانډول (معادل) و لری بلکی هره یوه پر خپل خپل وار لومړی خپله آره شتمنی راخوندی کوی او بیایی په‌تا کنو او جوړو نو او ور پسی له نورو ژبو څخه په پورو نو راپوره کوی . په بله و ینا هره ژبه دخپلی ویونکی ټو لنی داندونو او خیالو نو ښکارندویه ده او د هماغی خپلی ټولنی اړتیا وو ته ځواب ویلای شی خو که له داسی نویواندو نو او جا جو نو( مفکورو او مفهومو) سره مخامخ شی چی یی خپله فکری

او کولتو ری زیرن نده نه وی او له نورو ژبینو ټولنو څخه یی سر چینه اخیستی و ی بیا نو دهغه دخر ګندونی لپاره تیار په تیاره خپل وییو نه نلری او دیته اړو ځی چی له هماغی زیږندو یی ټولنی څخه هم جا جو نه (مفهومونه) او هم‌کالبو نه (وییو نه) یوځای راواخلی یا پور کړی ، خو څنګه چی‌یوواریزه

او یو مخیزه اخیستنه یا پورونه دپوروړی ژبی رغاونه او شتوا لی له ډار سره مخامخوی نو له نړ یوال دود سره سم ته یو څه زباړونو او جوړونو څخه کار اخلی .دنورو ژبو غو ندی ، دپه پښتو کی و یی جوړو نه له پخوانه دود وه خو هغه مهال یواځی دشاعرانو او لیکوا لو له خواتر سره کیده چی بایز یه رو ښان ، خو شحالخان او قادر خان ختهك یی ځلاند ساری (مثالونه) بللای شو .

په نو لسمه پیړی کی پښتو و یی جوړو نی له عسکری او اداری نو مو نو سره نوی بڼه و مونده او بیایی ورو سته په څه ناڅه اکادمیك ډول دپښتو مر کی اوپښتوټولنی له منځ ته راتلو اوهغه هم په ۱۹۳۶ کال دپښتو له رسمی کیدو سره په‌زړه پوری پر مختګ وکړ. خو له بده مر غه راوروسته په دی برخه کی دځینو اماتورانو بی سرو بوله جوړونی ددی سبب شوی چی زموږ ژبنی ټو لنی دالړی ګرد سره پریږدی اوهیڅ ور ته دیوه منلی علمی پر نسیپ او یوی نه شلیدو نکی تا ریخی

اړتیا په ستر ګه و نه ګوری . آن تردی چی بل چاته هم اجازه ور نکړی ، کومه علمی ژور نا لیستی یا اداری نو مو نه مینـــځ ته راوړی . په دی وروستیو څو کلو کـــی خبره لادینه و رسیده چی نګه او سو چـــه پښتوویونه ورته هم‌نوی جوړونی وبریښی او ورسره حسا سیت او ضدیت پیدا کـــړی مګر بیاهم له‌دی ټولو خنډونو اوبندیـزونـو سره سره ددغه توپان مخه ونه نیول شوه او په سلګو نو نوی جوړونی او ټـــا کـنـــی رامنځ ته شوی او لا را منځ ته کیږی . دانو دژبینو ټولنو او قاموس لیکونکو کاردی چی‌هغه وخت پر دوخت راټو لی کړی او دپښتـــو دلیکنی او کولتوری پانګی په تو ګه یـــی قاموس ته وسپا ری او پکار یی واچـــوی . ژبپوهان هم داپاړه ( وظیفه)، لری چی دغه پیښه دیوی ژبنی ربړی (پرابلم) په توګـه وگنی‌دهغی داواروني‌اوحل‌لپاره‌مټی راونغاړی.

په دی پوره باور دی چی‌که دنوی‌جوړونی دبړه او ستو نزه داما توری او شو قـــی څیړنی او قضاوت پر ځای دنوی ژبپو هـنی په رڼا کی ترپام لاندی ونیـول شـی بیـا دهیڅ راز حسا سیتو نو او غند نو ځـــای نه پاتیږی .

ننی ژبنی سا ینتیستیوه داسی ژبنی دبړه هیڅکله یو اړخیزه او سر سری نــــه څیړی . هغه پو هیږی چی یوه ژبه څو مـره په ګړیدو نکو اړه لری او څو مره په لیکونکو او پو هانو یادیوی علمی مدنـــی یا اداری نو مو نی‌په جو ړو نه کی ټول لو ستـــی نالوستـی غـږیدونکـی واک لری که نه هغه یواځی دځانګړو ما هرانو یا علمی ډلو کـار دی .

دادی په دی برخه کی زموږعلمی ور مندو نه (قضاو تو نه) او میتو دو نه پـه‌لاندی ډول لنډیږموومی .

۱– نوی جوړو نه باید یواځی په علمی تخنیکی ، مدنی او اداری او داسی نـــور وجاجونو (مفاهیمو) پوری تړ لی وی چی‌زموږ خپله فکری او کو لتوری زیرنده نه‌وی لکـه ژبپو هنه ، ټولنپوهنه ، ژو پو هنه، ژوبڼ، توغندی ، پو هنتون ، پوهنځی ، رو غتون، وږکتون، درملتون ....

۲– بـایـد هـره جـــوړونـه یـه یــــو سرو نه شی بلکی دیوی داسی ډلی له خوا وی چی یو دوه غړی یی دځانګی اوالاوی‌او یو دوه یی ژبپو هان او هغه هم دویپو نـی متخصصین . چی په هره جورو نه یا ټاکنه‌کی په داوروسته ټکی پام کی نیسی !

۳– په ژبه کی یی له پخواویـیـونو سـره لفظی اومانیز ګډون او تکرارنشی.

٤– رغنده توکونه ( متشکه اجزاء ) یی دژبی خپل سو چه مال وی او داشتقاق یـــا ترکیب بیلګه یاماډل یی تیار په تیاره پــه ژبه کی شتوالی و لری لکه بنکیـــــلاک استعمار) ځبیښناک (استثمار یا بهره کـش) ویشناک (تجزیه طلبی )، نیواک‌اشغا ل) چی دژواک ، خښناک ، خوراک ،تپاک ، یاپخسا ک، په بیلګه په اشتقاقی ډول له فعلی بنسټ او اسمی رو ستاړی(اک) څخه نوی جوړ شوی سیاسی او ژور نا لیستی و ییونه دی.

٥– باید هغه وشی چی‌نوی رغیدونکی وی‌یی له‌پردی انډول څخه که لنډنه وی‌نو اوږدتری هم نه وی څکه انسا ن تل سپما او لنډو ن

خو ښوی او دغه ځانګړ تیا له ژبینو معیارونو څخه هم ګڼل کیږی .

٦ـ آسا نوالی او روانوالی دیوه بـل ژبنی معیار په تو ګه پکی سمبـــــــال شی .

۷ـ وینګ او آهنګ یی پر غوږوبــدونه لګی .

لنډه داچی پښتو و یی پانګه بایدنورو علمی ژبو غوندی له څلورو خواوو څخــه بشپړوالی ولری :

په سلو کی (۲٥) له او سنیو ګړدو دو (لهجو) ، (۲٥) له زړو ادبی متنو ، (۲٥) له جوړونوو ټاکنو او (۲٥) له نورو ژبــو څخه دپوروونو ، له لاری یا به بله و یناپښتو ویی پانګه باید پر دغو څلور ګو نوښستونو یا اړخونو ولاړه وی ( ګـړ دو ددی ، متنی، مصنوعی او عاریتی) .

# په اریایي یا هندواریایي (هندوایراني) ژبني څانګه کې
# د پښتو ژبې دریځ

په افغانستان کې اریایي او هند و اریایي ژبې

هندي | اریایي

لوېديځي — اریایي — ختیځي

**زړه اریایي**
تراریکي قوم
زړه پارسي drd
اوستا zṛd-zarad

**منځنی اریایي**
لردوکي ترادرو سیلادي
منځنی پارسي dil SW
پارتي zīrd NW
سغدي No
ختني No
خوارزمي No
باختري No

**نوې اریایي**
لراتي سیلادي راپېښی
پارسي (دل) del SW
بلوڅي del, dil SW
شغني zārd No
روښني zārd No
اشکاشمي qvzók No
سنګلیچي âvzųy No
واخي poẓiv No
منجي ziḷ(g) No
پښتو zṛa No
پراچي zōṛ, zor So
اورمړي zle, zlī So

هندو اروپایي

**زړه هندي**
ويدي
سانسکریت
hṛd-, hṛdaya-

**منځنی هندي**
پراکریت hadak(k)a
hiaa-, hitaa-
hadaya-
Pāli
ګندهاري

**نوې هندي**
پنجابي hiāū
سندي hio
ګجري (LW)

**دردي**
پشه‌یي (h)ār
تیراهي wyra
ګوربتي hirq

**نورستاني**
کتي zira
وایګلي zō
اشکوڼي židị, žedī
پرسوني zir, zar

# بلوچی ژبه

داخبره ثن ثا بته شوی ده چی بلو څی ژبه یوه څورا لر غو نی آریا یی ژبه ده ، **چی تر زیاتی اندازی پوری یی خپل لرغونی** شکل خو ند ی کړی دی **که** چیری په دی باب مفصلی **څیړلی او خبری و شی نــه** یوازی دا چی په دی لنډه لیکنه کی نـــه ځا یږی بلکه ډیر وخت په کار دی ځکه‌چی **ددی ژبی په باب ډیر و پوهانو** اومحققانو له خوا څیړنی شوی‌اوراز راز نظریی وړاندی کړی دی چی ځنی په علمی استنا دو برابری **خو ځینی یی محض خیا لی او تصــو ر ی** ینه لری زه غواړم چی دلته په لنډه ټو ګه دبلو څی ژبی په با ب یوازی د هغو پوهانو نظر یی وړاند ی کړم کو م چی په لیکلی تو ګه ما ته په لاس را غلی دی .

دبلوڅی ژبی په باب دپوهانو نظریی:

**میجر ای موکلر د بلوڅی ګـرامر په سر —** یزه کی وا یی :(مو ږ په اطمینا ن سره‌ویلی شو چی بلو څی د آر یا یی ژبو یو ه څانګه او دپهلو ی ژبی خورډ ه چی ددی ژبی سره په یو و خت او زمان کی له زړی‌پا ږ سو څخه منځ ته را غلی او ور سره څنګ پر **څنګ پرمختګ کړی دی د** پروفیسورګا‌یګر نظر دی چی بلو څی دهغو لر غو نو آریایی ژبو سره ور ته وا لی لری چی دپخوا نی **پهلوی یا پرزوی په لیك دود لیکل** شو ی دی . ګر یر سن عقید ه څر ګند وی :

**له هغو ژبو څخه چی موږ یی نا پا ږ سو** ېږلو او دوید ك ژبی اطلاق هم پری کیدا ی شی دپا میر ژبی دی چی په هغو کی پښتو، **بلوڅی ، غلچی او ورمړی شاملی دی** .

دغه را ز نو موړی زیا تو ی چی بلوڅی داو ستا کتا ب دژبی سره ور ته وا لـــی لری او دهخا منشی دوری دډ بر لیکو نوژبه نه ده بلکی د نو مو ړی دوری ژبه لرغونی فارسی ده . خو ځنی په دی عقید ه دی چی **بلوڅی د کلما تو او تر کیبو نو له مخی** دهخا منشی دو ری دډبر لیکنو د ژ بی سره ورته وا لی لری لکه په دی مثال کی :

هخا منشی : منا پته و شتا سپه

بلوڅی : منی پت و **شتاسپ انت**

**(زما پلار و شتاسپ دی )** .

خو آر یا نس ( ۳۲۳ق‌م ) او استرا بو وایی چی دهخا منشی پاد شا هانو دو ر ی ژبه او ددوی مورنی ژبه سره بیله و ه‌دا خبره د غور او څیړ نی وړ ده ځکه چی که دهخا منشی دوری دلیکنو ژبه یوه دا ســـی ژبه وی چی بلو څی سره ور ته وا لی لری، **کیدای شی چی او ستایی ژبه و ی چـــی** هخا منشیا **نو هغه** درسمی چارو د پا ر ه استعما لو له او ددوی خپله ژبه لر غو نی فا رسی وه چی **له هغی څخه** نو ی فا رسی راوتلی ده او **که** چیری دهخا منشی دو ری رسمی ژبه یوه او ستا یی ژبه وی نو بیاد‌ا خبره د تحقیق وړده چی د کو م ځا ی **اوستایی ژبه ده او پر هغی با ندی کو م**ی دوری تیر ی شو ی دی .

په هر حا ل دبلو څی او پهلوی ، بلو څی او هخا منشی او د بلو څی او او ستا یـــی

ژبو تحقیق او پر تله آسا ن کارنه دی خو تر
نن ورځی پوری چی لږ او ډیر میخی او پهلو ی
لیکنی لو ستلی شوی دی دهغو ی زیا ت
کلمات او تر کیبو نه دبلو څی ژبی سر ه
نږدیوالی ښیئی .

هیوز وایی : بلوڅی او بر ا هو یـــی
اسا سا سره تو پیر لری بلو څی او سنی
پاړسو سره خپلوی ښځی خود کلران لهجه
دشما لی بلو چستا ن دخلکو له لهجـــی
سره څرگند توپیر لری او داسی گمان کیږی
چی دکلران لهجه دی د پا ړ سو یوه لهجه
وی چی له لر غو نی پا ړ سو څخه راو تلی
د ه ۰ ا ی پیــــــر س هـــم په خپلـــه
هغـــه لیکنـــه کی چی پـــه ۱۸۷٤ میـــلا د ی
کا ل کی یی کړی ده بلو څی د پا ړ سو
یو لهجه بو لی . ارانسکی او پیکو لیـــن
بلو څی یوه آریا یی ژبه بو لی چی دو ی
مشهوری لهجی لری (شرقی اوغربی) گلبرت
سن پسځپل کتـــاب (بـــلـــو څـــی بـــه)
کی بـــلو څـــی ژ بـــی تـــه د پهـــلـــوی
خور وا یی دغه را زو یلیم ډ یمز ، ډی ،
ایم ، میر او جو زف الفن با ین پخپلو لیکنو
کی بلو څی یو ه لر غونی با ختری او ستایی
ژبه بو لی ډ یمز وا یی :( که څه هـــــم
بلو څی له سیا سی انقلا بونو او تا ریخی
پیښو څخه ډیره متا ثره شوی ده خو بیا یی
هم خپله اصلی بنه او څیره یی خو ندی
کړی ده . )

د حدود العا لم لیکو نکی بلو څی دآریایی
ژبو په شمال لو یدیځ گـروپ پـــو ر ی
متعلق بولی د بریتا نیـــکا دایرة المـــعارف
دبلو چستان تر عنوا ن لا ند ی وا یی چی
دبلو چستا ن اصلی ژبی پښتو ، بلو څی او
جتکی دی چی پښتو او بلو څی په آریایی
گروپ کی (ده په زړه اصطلاح اوجتکی په هندی
څانگه پو ری اړه لری .

دکولمبیا دایرة المعارف بلوڅی دآریایی
ژبو په ختیځه کورنی پو ری مر بو طه گنی.

دآریانا دایرة المعارف وایی ( بلوڅان چی
دبلو چستا ن نوم هم له دغی کلمی څخـــه
جوړ شوی دی ددوی ژبه دآر یا یی ډ لی
په هندو ارو پا یی ژبو پوری اړه لر ی )دغه
رازنو مو ړی دایره المعارف لیکی چی د
آریائیانو گـــهه ژبـــه چـــی د ۳۰۰۰ ق.م په
شا و خوا کی پیدا شوی ده پر لا ند ی
څانگو باندی ویشل کیږی •

جر ما نی، سلتی ، ایطا لوی ، فرا نسوی،
هسپا نو ی، پر تگا لی ، سلا وی، بالتیکی
هند و با ختری ـ چی هندو با ختری بیا دوی
څانگی لری ، دهند ی ډلی پخوا نی شکلونه
دوید ، سا نسکر ت او پر ا کرت ژ بی دی
او په با ختر ی کو رنی کی پاړسو ،پښتواو
بلو څی شا ملی دی چی ددوی پخوانی شکلونه
فرس قدیم ، او ستا یازند او پهلو ی ژبه
ده . فقیر حسین سا حرهم پخپله رسا لـــه
کی بلوڅی ژ به د پښتو ژبی سره په یـــوه
قطار کی راوړی ده .

( دافغانستان ژبی او توکمونه ) په کتاب
کی د بلوڅی ژبی په باب داســی معلومات
یوا زی یو څو کلمی پا تی دی او بس . ب
ځینو په عقیده اوستا هم د میدی ژبو سره
نږ دی شبا هتو نه لری ددغه ځای د ژ بو
دیا لکتو نو ته کله کله په پو هنه کی د
(پار تیا نی د یا لکتونو ) نو مو نه هـــــم
تاَر یخی هـــیواد د ی د میدی ژ بـــــی نـــه
وپاندی شویدی «دغه ژبه دمیـــدیـــك شمـــال
لویدیځ گروپ یوه مهمه څانگه ده ددغه گروپ
دژبو او دیالکتبونو اصلی ټاټوبی دمـــیدیـــا

ورکول کیږی ...) بیا وایی : (بلـوڅی په پا سنی حسا ب که څه هم دپښتونه په ځینو ملحو ظا تو بیلیږی خو بیا هم ډیر فونتیکی او لغوی خپلوی ور سره لری ... )

دلته د کتا ب د لیکو نکی ( محتر م دو ست ) دو ینا په تا ئید داچی بلو څـی دپښتو سره فونیتکی اولغوی خپلـوی لـری زه غواړم دنمو نی په تو گه څو مثا لو نـه وړاندی کړم :

۱ـ لکه څـرنگـه چی په پښتو کی د(ټ، اوړ ) آوازونـه موجـود دی ، دا آوازونـه په بلو څی ژبه کی هم شته ، لکه :

ډ : ډول ، ډنډ، ونډ، بونډ،گونډ، زنډ، پډ.

ړ : وړ، جوړ، ناجوړ، بوړ، لوړ، گړب .

ټ : گوټ، پټ، مټ، بټ، چټ، لټ،کټ.

۲ ـ په دواړو ژبو کی صفت تر مو صوف دمخه را ځی لکه :

پښتو : ښه قلم، سورگل، سپینه کتابچه، لوړه غونډۍ .

بلوڅی : شرین کلـــم ، سهرین پل ، سپتین کتابچه ، برزین دك .

کی شرین (ښه ) سهر ین (سور) سپیتن (سپینه) او برزین (لوړه) صفتونـه دی چی دنو مو نو په سر کی را غلی دی .

۳ـ په دو اړو ژبو کی لو مړ ی مضا ف الیه او وروسی مضاف راځی، لکه :

پښتو: زماقلم ، دهغه مور، ستاغویی ، د هغوی کتابونه .

بلوڅی : منی کلم، آیی مات (ماس)، تهی گوك ، آوانی کتاب .

٤ـ (ین ) په دواړو ژبو کی نسبتی لاحقه ده، لکه :

پښتو : خاورین ، ژړین، مالگین،خوږین.

بلوڅی ، ماگین، برنجیین وادین، بتین.

٥ـ (یی) په پښتو کی نا خپلو ا ك منفصل ضمیر دی چی د نو مو نو په آخر کی راځی په بلو څی کی هم دغه حکم لری او کلـه په عین شکل او کله یوازی د (ی) پـسـه پول دنو مو نو په آخر کی را ځی لکه :

پښتو : څمکه یی، ور وریی ، کتا ب یی

بلوڅی : ډگا ری، برا تی ، کتا بی ، کتابچه یی ، لویی یی .

٦ـ په دواړو ژبو کی ابتدا په سا کن شنه اودډیرو کلما تو په لو مړ ی تو ری باندی کوم حر کت نشته ، لکه :

پښتو : سپین، ورین ، تل، وړاندی.

بلوڅی ، سپیت، نند، بگش، بره.

۷ـ په دو اړو ژبو کی د جنس نو مو نه جمع نه لری اود جملا تو په پا ی کی فعل دجمع په ډول راځی لکه :

پښتو : ښه غنم دی، ښه غوړی دی.

بلوڅی : شرین گله انت ، جوانین روگن انت.
رو گن انت

(انت ) په دغو مثا لونو کی جمع ده چی د(دی) معنی ور کو ی .

۸ـ په دواړو ژبوکی عربی توری یوراز تلفظ کیږی ، لکه :

ق= ك ، ف = پ، ط = ت ، ص ث = س ظذ = ز اونور ...

۹ـ په دواړو ژبو کی (ته ) د مفر دمخاطب دضمیر په حیث را ځی ، لکه :

پښتو : ته کښینه ، ته وایه،ته گوره ته څه.
ته څه

بلوڅی : ته بنښه ،ته بگش، ته بگند، ته بره.

لکه چې د مخه مې وویل د لته زما مقصد دد واړو ژبو گر امری پر تله نه ده خو یوازی د محترم دوست دوینا په تائید دا څو مثالونه وو چې یا دونه یې وشوه اوس دنمو نی په تو گه څو لغتو نه را وړم چې په دواړو ژبو کې یو راز او په یوه معنی استعمالیږی :

ټپ، مړا ، ټال ، کو تك ، جر گه ،کوټه، مټ،پسټ ، لټ، اړ، پیر گټې، د یوال، متا ر ، سا ما نه ، ډول ، ډوب پټو ، جوړ، ملنډ ، لنگو ټه ، ناوړ ، تکړه ، ډبلی ، بلگك ، لړ، وړ، سیال ، منگال ، رخت او نور ...

دهغو کلما تو څو مثاله چې په دې دواړو ژبو کې په خورا لږ تو پیر سره استعما لیږی:

پښتو : اومه، غړمبل ، ټوپك ،ښا زنگ، سوبه ، جونگی .

بلوڅی : امگك ، غړمبگك ، توپك، ډزنگك سوب ، جو نگك

پښتو : جنکی ، سا تل ، ډاډ ، مړا نه، دڼل ، شپشتی •

بلو څی : جنك، ساتگك ، ډل ډډی ، مړانگی، منگك، سپست او نور •••

پوهاند عبدالحی حبیبی د «پښتو ادبیاتو تاریخ» په لومړی ټوك کې بلوڅی ژبه د آریا یی ژبو په نا پاڼ سو کو رنی یعنی (زند) پوری مربوط گڼی او وایی چې پښتو هم اساسا له همد غې کورنی څخه ده .

جورج مور گنستیرین وا یې بلو څی یو ه آریا یی ژبه ده چې دهغی په لهجو کې کوم مهم تو پیر نشته ځکه چې بلو څقبا ئل یو له بل سره تما س لری او کو م مجرد او بیل ټو لنیز گرو پ نشته چې ددوی په ژبه کې دژ ببو هنی له مخی دتو پیرو نو سبب شوی وی .

داکتر خا نلری آریا یی ژبی دا سې گروپ بند ی کو ی :

(لهجه های ایرانی را به سه گروپ تقسیم می کنند :

۱ـ گروه جنوب غربی شامل زبا نها ی کناره های بحر خزرد انند گیلکی ومازندانی وطا لشی و زبا نها ی ( زازا ) و گو را نی (در منطقه کندوله )و زبا نها ی مر کزی آبادی ها ی اطرا ف تهرا ن واصفها ن همدا ن و نا مکن ویزد و سمنا ن وبیا با ن همچنین دوز با ن که هر یك به لهجه ها ی متعدد تقسیم می شوند یکی کرد ی که شا ید دنبا له زبا ن مادی با ستا ن با شد.. ودیگر زبا ن بلو چی که دارا ی ادبیا ت شفا هی گرا نبها ی است و ظا هرا درحدود قرن سو م هجری در نا حیه امروزی بلوچستان و کلرا ن استقرا ر یا فته و شا مل دو یا سه لهجه می با شد .)

دفرهنگ معین په سریزه کې دبلو څی ژبی په باب داسی معلومات و ړ ا ند ی شوی دی (بلو چی اصلا از گرو ه شما لی زبانهای غربی است و بلو چها ظا هر ا از شمال بجنوب کو چ کرده اند . و لی بلو چی به علت مجا ورت با زبا نها ی شرقی ایرا نی بعضی از عوا مل آنها را اقتبا س کرده است ما نند گس = خا نواده (؟)گو نلو کو تا ه، گود = جا معه که نظیر آنها را در

زبا نہا ی‌شر قی ایرا ن میتوا ن یا فت . همچنین بلو چی بعضی از لغات برا هو یی وسند ی را اقتبا س کرد ه است .

زبان بلو چی لهجه ها ی مختلف دارد که مهمتر ین آنها بلو چی غربی و بلو چــــی شر قی است که هر یك نیز تقسیما تفرعی دارد اما روی هم رفته به علت ار تبا ط قبا یل بلو چ با یکد یگر تفاوت میا ن این لهجات زیاد نیست .

جها ن گر دان اشعا ر حما سی وچکا مه ها ی از بلو چی ضبط کرده اند در اینجا ما زبا نی قد یمتر از فا رسی می یا بیم مثلا از بلوچی (روچ) فارسی (روز) فارسی امروز (روز) نسبت به (رع وچه) متون‌فارسی با ستا ن اند کی تغییر یا فته است . در بلو چی (بندگث) (الزا می) شبیه پا رسی باستا ن (بندکه) بند ه و نو کر .

در بلو چی (کپته) (افتاده) که در فا رسی میانه بصورت کلمه مستعار (کفت) شنا خته شده ودر فا رسی جدید مستعمل نیست . این لغات نشان میدهد که بلــو چــی تا چــه حد در مقابل تغییرات صو تی مقاومت کرد ه است . در بلو چی هم ما نند بسیا ر ی از زبانهای دیگر لغــات بسیار از همسایگــــان وارد شده و میراث ایــرا نــی آنرا غــصب کرده است ... در زبا ن بلو چی علا و ه بر کلمات متعارف عــربی و فــارسی عنصر (سند ی) نیز مشا هد ه می شود و لــی بعضی بخش ها ی تعریف دوره قد یمتر ایرانی که در زبا ن فا رسی جدید اثــری از آن نیست در زبا ن بلو چی با قیما ند ه است . )

دبلو خي مشهور لنگو ست میر عا قل‌خان مینگل‌بلوخي داندواروپایی ژبوپه آریایی‌گروپ وړ نه ده څکه د داریوش هغــه ډیــر لیــك پوری مر بو طه گنی چی د ژ بو هنی لــه مخی زیا تره د کرد ی او فا رسی سر ه ورته وا لی لری .

داحمد عبدالله په عقید ه بلو خي دآریا یی ژبو له ختیځی کورنی څخــه ده میجر جورج و.گئ . دبلـــوخي انگریـــزی ډ کشنری په سر یزه کی وایی چی بلو خي ژبه د هند وایرانی ژبو داتصال کړی ده اوددغی ژ بـی ډیر مختگث ځای بلو چستا ن دی د غه را ز نوموړی وایــی چــی د عر بی ژبی تا ثیر په بلو خي کی خورا لږ دی او نسبت و نورو گواندیو ژبو ته عــربی لغات په بلوخــی که کم دی همدا شا ن نو مو ړی دبلو خــــی او پښتو ژبو په ار تله کی وا یی چــــی دواړو ژبو له پــراکــرت څخه ډیر لغتــو نه اخستی دی اودواړو ژبو تر منځ نږد ی اړیکی شته او دکر دی ژبی اصل هــــم بلو خی ته معلو میږی نه پا ړ سو ته .

بلو خي میا شتنی مجله د ۱۹۵٦ کا ل دجو لای دمیا شتی په گنه کی دبلو خــی دمختلفو لهجو د څیړنی به ضمن کی‌څر گندوی چی ( بلو خي یو ه آریا یی ژبه ده اوکوم تاثیر چی نورو آریا یی ژبو یوه پر بــــل باندی کړی ، دغه ژبه هم له نورو آریا یی ژبو څخه متا ثره شوی ده . نو مو ړ ی مجله زیا تو ی ( دځینو داخیا ل دی چــی بلوخي د پاړ سو بدل شوی شکل دی مگر حقیقت دارازنه دی البته دابه سړی و منـی چی په ځینو موا ردو کی دنورو سیمه ایزو تا ثیرو نو په جمله کی دهغه ځای په‌بلوخي

کی د پاړ سو لړ او ډیر اثر شته دی لکه چی په ختیځه برخه کی د پا ړ سو په ځای دنورو همسایه ژبو لکه سند ی او سر ائیکی ژبو اثر زیا ت لیدل کیږی ) .

دریچارد و . ویك په عقیده دبلو څی ژبی رینبه دپښتو په څیر اندو ارو پا یی ده او ویلبر عقید ه لری چی بلو څی داندو واروپایی ژبو په ایرا نی کو رنی پوری مر بو طه ده چی په ختیځ او لو ید یځ گرو پونو با ندی ویشل کیږی . سا یکس پخپله سفر نا مه کی وا یی ( که څه‌هم ظاهرا بلو څی دفارسی سره توپیر ولـری بیاهـم دآریایـی کلماتو له ریښو څخه اخستل شوی دی .)

د ۱۸۲۹ م کال دامریکانا دایرة المعارف خر گند و ی چی بلو څی یوه آریا یی ژبه ده او پـه‌دی ژبه کی دپاړ سو اثر لید ل کیږی چی دهغه علت ددغی ژبی دویـونکـو تماسونه او مها جر تو نه دی کا ر لستو ن په کا روا ن نو می کتا ب کی بلو څـــی دپا ړ سو یو منحرف شکل بو لی اوسراولف کیرو دبلو څو نسل او ژبی ته آریا یی وایی.

څنی وایی چی بلوڅی سره له دی چـی ډیری کلمی له پارسی ، عربی او اندو آریایی ژبو څخه عاریت اخستی دی د آریا یی‌ژبو یوه مستقله څا نگه ده او دآر یا یی ژ بو پـــه شمال غربی گروپ پوری مربوط ده .

داوی دبلو څی ژبی په هکله دځینو پوهانو نظریی خو بیا هـم خبره په همدی ځــای نه ختمیږی زیا تر و ژبپو ها نو یا ختر ی آریا یی ژبی پر دوو گر وپو نوبا ند ی ویشلی دی چی یو گـــروپ یی سا سا نی پهلوی ته نږدی بو لی او بل گرو پ‌یی په اشکانی‌پهلوی‌پوری‌مربوط گنی‌حال‌داچی‌بلوڅی ژبه یوځای دی ته اوبل ځای هغـی ته نږدی کیږی او کله چی مو ږ دواړی په نظر کی‌و نیسو (نو لکه چی دیو شمیر پوهانو نظـر هم دی) دی نتیجی ته رسیږو چی بلو څی دیوی بیلی آریا یی ژبی ادامه ده چی تراوسه پوری مو ږ ته په ښه تو گه نه ده خر گنده شوی . دموضوع دپوره روښانولودپاره دلته غوا ړم چی دبلو څی ژبی څو کلمی داشکا نی پهلوی او سا سا نی پهلوی او ور پسی د پاژند سره پرتله کړم) او د هغوی د اړیکـــو ته ځیر شو .

| بلوڅی : | اوستا: | اشکانی پهلوی: | ساسانی‌پهلوی: | دری: | پښتو : |
|---|---|---|---|---|---|
| پاد | پاذ | پـد | پای | پای | پښه . |
| پتر | پترا | پهر | پس | پسر | زوی . |
| جن | جن | جن | زن | زن | ښځه . |
| زرد | زرد | زرد | دل | دل | زړه . |
| کن | کرن | کر | گن | گن | وکړه . |
| گند | وین | وین | وین | بین | گوره . |
| مدگ | مذخ | مذگ | ملخ | ملخ | مچخ . |
| نند | رنشد | بنشد | نشین | نشین | کښینه . |
| هید | خوید | خوی | خوی | خوی | خولی . |

له دغو مثا لونو څخه څر ګند یږ ی چې دبلوڅی (پاد – پتر– چن ، زرداوهید) او – ستا سره خو را نږدې دی دغه راز بلو څی (کن) دسا سا نی پهلوی سره او (مد ګ) داشکا نی پهلوی سره نږ دی دی ، خـــود (ګند او نند ) کلمو څخه داسی ښکا ری چې داو ستا (و) دبلو څی په (ګ ) بدل شوی او داو ستا (وین ) په بلو څی کی(ګین) شوی چی نن (ګند ) تلفظ کیږی مګر د (نند ) کلمه نږ شا ته بل څو له ده خـو ددغی کلمی بنیاد هم او ستا ده او ددغـــو کلمو څخه معلو میږی چی په بلو څی کی دغی کلمی له او ستا نه را غلی دی نه د ساسانی پهلـــوی یـــاد اشکانی پهلوی څخـه بل دا چی بلو څی د مصدر او زما ن له نقطی نظره هم دسا سا نی او اشکا نی‌پهلوی څخه بیله د ه او په صفت او مو صو ف او او مضا ف الیه د مازند را نی، تا لشی او وتاتـــی په شان د زړی اوستایی او لـــرغونی حال کی چی پهلوی دغه ترتیب تـــر یو ی اندازی پو ری له لاسه ورکړی دی څنی وایی څر ګنګه چی ټو لی اریا یی ژبی او لهجی یو ه ریښه لری پرته له نسبی شباهت څخه چی یو ه له بلی سره‌لری‌یوه‌پربلــــــی با ند ی متقا بل ا ثر هم لر ی همدا سبب دی چی دغی ژبی او لهجی یوه له بلی سره لری او پر دی نه دی .

او لکه چی دمخه وویل شو بلو څی له یوازی دا چی د اشکا نی یا سا سا نـــی پهلوی څخه نه ده را وتلی بلکی په یو ه بله آریایی ژبه پوری مربوط ده او بلوڅی دصفت او مو صو ف ، مضا ف او مضا ف‌الیه ترتیب او د تلفظ له مخی هم خورا لر غو نی شکلو نه سا تلی دی او ویلی شو چـــی بلو څی د دری خورنه ده او کید ا ی شی چی‌دپهلوی‌مشر تروزی (خاله زاده ) و ی او س د بلو څی څو کلمی دپا زند ، پهلوی، دری او او ستا سره مقا یسه کوو او څدوی پاړ سو تر تیب یی سا تلی دی په دا سی اړیکو ته ګورو :

| بلوڅی : | اوستا : | پازند : | پهلوی | دری : |
|---|---|---|---|---|
| بریچ ، بریس | بریچ | بریز | بریژ | رشتن . |
| بوج ، بوجګ | بوج | بوز | بوژ | رهاکردن . |
| پچ ، پچك | پچ | پز | پچ | پز، پختن . |
| تاچ ، تاچك | تاچ | تاز | تاچ | تاز. |
| وان ، وانګ | هوان | خوان | خوان | خوان . |
| زان ، زانګ | زان | دان | دان | دان، دانستن. |
| ریچ | ریچ | ریز | ریچ | ریز . |
| سوچ | سوچ | سوز | سوچ | سوز. |
| روچ | روچا | روز | روچ | روز. |
| آپس | آپترا | اوس | اوس | آبستن . |
| تهار | تنترا | تار | تار | تار. |
| شود | خشود | شوی | شوی | شوی . |
| سهر | سخرا | سرخ | سرخ | سرخ . |
| شپ | خشپ | شو | شو | شب . |

